# پښتو ښووېنه

پوهاند دوکتور مجاور احمد زيار

کابل پوهنتون

# د ژبپوهنې بنسټونه او

# پښتو ښوونیزه ګرامر



پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

د ژبو او ادبیاتو پوهنځی

۱۳۶۲

# پیر محمد کاکړ

ته

چې په ۱۱۹۵ ق کال یې پخپل
"معرفة الافغاني"
د پښتو ګرامر لیکنې
بنسټ ایښی
دی

# نيولیک (فهرست)

| سرلیک | مخگنه |
| --- | --- |

| سرلیک | مخگنه |
|---|---|

| سرلیک | مخکنه |
| --- | --- |

# یادښت

د نوي او زاړه ترمنځ نه شلیدونکې شخړه یو دیالکتیکي قانون دی.
هر څیز او پدیده په خپل ځان کې دننه د یوه ورته سي نوي او زوړ (ضد) لري
روزي او په ځمدي دود او دوي دوګړې ټولنې بشري تاریخي بهیر څخه پر وړاندې
دروي او له دې ښتره یې اند او پوهه په دې توګه له مهال تیریدنې او ځانګړو ځانې
او جهاني آزرو نو شره بشر بشري پوهنه تل بدلون او نوي کیدون مومي
او همدغه بدلون او نوي کیدون یې بشپړ تیاپي تګلوري ورښیخوي.
زموږ په ورځني پانګې ټولنه کې د نورو بشري پوهنو په لړ کې ژبپوهنه هم
نوي دود وړیدونکي ده او زموږ له ټولنیز، ورو او نو شره تسم یې لیور ځنګه اسم
دود نه وي موندلي چې په لوړ، ښمره کې په ځنګه بیا دوخته زور په موي، که څه هم
لږ تر لږه شل کاله پوره کیدونکي دي چې نوي ژبپوهنه د ادب پوهنځي له لارې
زموږ هیواد ته سره را دننه کړې، خو بیا یې هم نه یوازې د زړې دو ریزې ژبپوهنې
ځای نه دی نیولی چې لا کوږتې یې تري ښتر هومره نه دی حسک کړي.

دغه طرحه یوه تجربه لري چې په عيني کې د تشريحي گرامر ليکلو څخه ندوو د څېړل شوې دي، خو دغه کارونه ابتدايي او نيمگړي دي.

له بله پلوه عالم دوکتور مجاور احمد زيار چې يو تکړه او غښتلی ژبپوه او په پښتو باندې مئين زيار گښ څېړونکی دی، ده يې زياتي موده په لوړو زده کړو او علمي کارونو په ترڅ کې د پښتو گرامر په څېړلو او تدريس بوخت وو، تر څو دغه کتاب يې تکميل کړ او د تدريسي متن په توگه درې ځله د گستتنر په شکل د ژبو او ادبياتو د پوهنځي د پښتو څانگې له خوا چاپ او د استادانو او زده کوونکو د گټې اخيستلو لپاره علمي ډگر ته راووت.

دغه کتاب په لومړي سر کې له ستونزو سره مخامخ شو. يو خو له دې امله چې څېړل شوې ندوو يا لږ وو؛ زموږ عنعني گرامرونه، چې البته خپل علمي رسالتونه يې پخپل وخت کې سر ته رسولي وو، د معاصرې ژبپوهنې له کلياتو، ضوابطو، مناهجو او اصطلاحاتو څخه خالي وو او د معتود له نظره يې زر کلنه زړه سابقه درلوده. دېو داسې نوره او پياوړې سيستم پر ځای لوی سيستم راغلی ته کول او د گرامري مناهجو او اصطلاحاتو بنسټيز بدلول اسان کار نه و. خو بيا هم دغه کتاب عموميت ومونداو اوس دا زموږ د پوهنې او کره کتنې له ډگر څخه په ځکسه غاړه برياليتوب تللی دی. بله دا چې په دې کتاب کې د ژبپوهنې معاصر بين المللي علمي اصطلاحات تر ډول په پښتو اړول شوي دي؛ د دې اثر لوی ستونزه په محدوده کې وه. زيار عقيده لري چې موږ بايد د علمي اړو پاړو اصطلاحاتو له پاره دا امکان په صورت کې او د پښتو د علمي معياري ژغاو نيز ظرفيت او د لغاتو د پانگې پر بنا د پښتو اند و لونه د موسوا و ياب يې کړو. دا د ستاينې وړ کار دی، خو بايد له احتياط څخه يې کار واخيستل شي او د افراط جنبه ونه لري.

د زيار د دغه کتاب ځينې اصطلاحات او علمي نوموني بنايسته زيات عمر لري او په تېرو گړو لو ژبپوهنيزو اثارو کې راغلي دي، خو زښت ډېرې يې نوي دي. په دغو نومونو کې هم

زیاته برخه اوس د ادبیاتو او ژبو په پوهنځي او، له پوهنتون څخه د باندې هم مل شوي یا او چه علمي څېړنو
او تدریس کې ورڅخه کار اخیستل کېږي. هیله کېږي چې کومه ورځ چېر ډېر ژر نومونو باندې جدي لګښونه
وشي او کره او عام به شي یا داچې تعدیل به وموي. خو زه شخصاً د دغو ابتکارونو قدر کوم او زیاته
ته کور ودانی وایم .

د کتاب پر محتوا باندې په دې سرېزه کې خبرې کول دغه وینا اوږده دوي. زه هیله کوم چې
دغه کتاب دې هرومرو او ډېر ژر په محمدي د دول خطاطي او آفسیت چاپ شي. تر چاپېدو وروسته
به حتماً کره کتنې ور باندې تشریح کېږي او لیکوال به یې په کلي توګه د څېړنې ندوه او محتوا دفاع وکړي.
علمي کره اثار یو په یوه او ناڅاپي منځ ته نه راځي. علم هم خانه د تکامل تاریخ لري. هره علمي پدیده (د ...)
د میلونو میلونو انسانانو محصول وي، شروع کېږي، او ده کومي نېټه یې وي تکمیلېږي او مخ په
وړاندې حرکت کوي.

اوس چې د ثور په تیمنی انقلاب د برکته د انقلاب لوی او شپېته تیاري پېر او راهیسې د پوهنې او
فرهنګ د ودې لپاره زموږ د قهرمان ګوند او انقلابي دیموکراتیک دولت په پاملرنه د ودې او
تکامل لار په ډېره ګړندۍ او ښه توګه برابره شوې ده. موږ د پوهنتون علمي او ذهني کارګران
... د ملنه ګڼو چې په دې بصیره (بې روسته) کې تخنیکي وسې سره تمه نشته تېزه او انساني ونډه واخلو او
پوهنه د خلکو خدمت ته وړاندې کړو.

د ژبار د زیارونو او کور ودانۍ سره سم — وړاندې د علم او فرهنګ د ډبستیاني وودې پرلور!

پوهاند محمد رحیم الهام
د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې استاد

ز

000013

# کتنه (۲)

(پښتو پښتونه)، د ښاغلي پوهاند دوکتور زیار اثر چې ولوست. دغه اثر د ډېرو عمده برخو او څېړنې لنډو مضامینو لکه: پښتنتوب، او لویې نومونې او په پای کې د مأخذونو فهرست لري. د ګرامر له پلوه برخه له پښتو اوازپوهې څخه بحث کوي چې په دې برخه کې پښتو غږونه او د هغوی پیدایښت او د دوی لوښه د نوې ژبپوهنې له مېتود او لوښه سره سم څېړل شوي دي.

د اثر دریمه برخه د غونډله پوهې (نحو) په نامه ده چې د ګرامر عمده برخه ده او په پښتو ګرامري آثارو کې د دغه برخې په تفصیل سره نه ده څېړل شوې او حتی ځینو ګرامرپوهانو پخپلو لیکلو ګرامرونو کې ورته اشاره هم نه ده کړې، خو پوهاند دوکتور زیار د دغه موضوع په تفصیل سره څېړلې او د پښتو ګرامري آثارو د دغه خلاء هم ور ډکه کړې ده.

د دې کتاب په تالیف کې چې د لیکوال د اوږدې مودې د څېړنې او مطالعاتو نتیجه ده له ډېرو مستند او معتبرو کورنیو او بهرنیو آثارو څخه استفاده شوې او په ډېر دقت او د یو منظم پلان له مخې او زموږ د زمانې د علمي مقتضیاتو په پام کې نیولو سره لیکل شوی دی او محصلانو او نورو څېړونکو لپاره یو ارزښتناک

او ګټور اثر دی. د دې اثر ارزښت او درنښت په دې کې دی چې د نوي ژبپوهنې د
څېړندود په اساس لیکل شوی دی او د پښتو په لورو داخلي او خارجي ګرامرونو کې لوی پیوند کېږي
او د پښتو په ګرامري آثارو کې یو ارزښتناک اثر دی چې په دې توګه به د پښتو ګرامر اصلي او اساسي
بڼه را برسېره کړي او د مېنه والو تنده ماتوي. د دې اثر یو بله ځانګړتیا داده چې د هر بحث
په اخر کې ګرامونه (تمرینونه) راوړل شوي دي، چې په خپل ذات کې یو ارزښتمن کار دی او په
ځانګړې توګه د زده کوونکو لپاره بې ګټې نه دی.

پوهاند دوکتور زیار په دغه اثر کې د پښتو ژبې سپېڅلي او سوچه لغات او اصطلاحات کارولي دي.
چې البته دغه کار یې د لا زیات ارزښت وړ دی، ځکه د دغو پښتو سوچه لغاتو او اصطلاحاتو
کارول دا ګټه لري چې د ژبې دغه اصیل مال به خوندي پاتې شي او د نورو بې ځایه پردیو ژبو لغاتو
او اصطلاحاتو ځای به ونیسي.

زه د پوهاند دوکتور زیار د دغه ابتکاري او علمي اثر چې د ده د څو کلنو څېړنو او پلټنو محصول دی، ستایم
او د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د زده کوونکو او په ځانګړې توګه د پښتو څانګې زده کوونکو لپاره د درسي کتاب
د ضرورت په پام کې نیولو سره د دغه اثر د ژر تر ژره چاپولو جدي سپارښتنه کوم او د پوهنتون
د خپرونو لوی مدیریت څخه هیله کوم چې لومړی دغه اثر خطاطي شي او وروسته چاپ ته وسپارل شي،
چې د طباعتي تېروتنو څخه ژغورل شوی وي.

په پای کې یوځل بیا د دغه ګټور علمي اثر د چاپ سپارښتنه کوم او لیکوال ته یې لا زیات بریالیتوب
غواړم.

محمد صابر خوېشکی
د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې پوهمل

ط

# لومړی پړک

# دژبپوهنې بنسټونه

# ۱- څپرکی

۱-۱ : ژبه څنګه لومړی ځل منځ ته راغلې ده؟

ژبه له ټولنیز ژوند سره سمه منځ ته راغلې ده. داسې چې د ټولنیز کار پهیر کې لومړنیو نغوتو او اشارو او ورپسې د چیغو پر وغږونو په بېلا خبرې اترې پیل اشوې او بیا له هغو څخه دیوې ټولنیزې اړتیا په توګه ژبه منځ ته راغلې. په دې توګه د نړۍ په بېلا بېلو برخو کې د بېلا بېلو لومړنیو ابتدایي ټولنو تر منځ بېلا بېلې ژبې منځ ته راغلې دي. په دې مانا چې د نړۍ ژبې د بېلا بېلو انساني ټولنو یا ټولګیو پر خلاف یوه ګډ منشأ نه لري.

ژبه د انسان د فکري بشپړتیا تر هر څه زیاته ځلانده او نژدې نښه ده.

۲-۱ : اند او ژبه، د انسان فکر چې هر ډول وي د غږیزو یا لیکلو او یا انځورولو پر وخت همېشه او هر وخت له ویېو (کلمو) سره ملګرې وي. ویي (کلمې) د اند وتو (افکارو) مادي استرګنه ګڼل کېږي. شعوریوازې د دغه مادي استر په مرسته راتلونکو ټولګیو ته د لېږد وړ دی.

انسان یوازې د ویېو په مرسته وکړای شول او کولای شي، خپل اندونو

او د څیزونو او مادي پدیدو نظراو موخې (هدف) اګاهانه انعکاسات
ثبت کړي، له خپلو همځلو سره ارزښت او الواک (نظر) ونجوري او د پدیو سوځې
لپاره په ټولنیز او ګډه کار لاس پورې کړي او د یو ټوکم پېبرې (برياوې)
راتلونکي نوکلتوره ورولېږدوي. ژبه د شعور په وده او د مجرد او تیوریک اند
په راپیدا ایښت کې ستره اغیزه لري.

د ژبې پیدا ایښت او بشپړتیا چې د انسان ټولنیز کار دی، د انساني شعور
له بشپړتیا یې بغیر سره نه شلېدونکې اړیکې لري.

د ژبې نه کار په بغیر کې بغیر څیزونو او پدیدو او ګډه لاملونو (عوامل) خوځښتونو
او اړینو توپیرونو نوم ولي دي او جوړ ت او مجرد جاجونو (مفاهیم) یې منځته راوړي
دي او په دې توګه یې خپل شعور پیاوړی کړی، او بشپړ کړی یې چې له همدې کبله وايو:

ژبه له آره له وییونو د غېدلې ده چې هر یو ویی یې په رڼه غږیزې بڼې او وییزې
ماناییزې محتوی لرونکی دی. یوازې تش غږونه له مانا پرته ويي او ژبه کیدای نشي.
د عیني واقعیت انګازه د وییونو په مانا کې موندای شو او د امانا د ویي په-
په غږونو کې ځای نیسي او خوندي کیږي او د ټولو همژبو وګړو لپاره اړونده یي
ټولنیز او عام فهمه مانا پیدا کوي چې د هغې په وسیله خپلې ګروهې او موخې څرګندوي
او نورو ته لېږدوي.

په لنډه توګه د ځنځیره او کړنه - کار، اند او ژبه د ټولنیز ژوند د په کار پر
بنسټ هم مهال منځته راغلل او بشپړتیا یې وموندله. د غه درې واړه یو له بله
یو نه شلیدونکې یووالی لري په دې ترڅ کې کار د دغه دیالکتیکي یووالي بنسټ
جوړوي. (۱)

..........................................................

(۱) اپیر نیکف آئین؛ ماتریالیزم دیالکتیک وماتریالیزم تاریخی کتاب اول؛ ماتریالیزم دیالکتیک ص ۱۱۵.

## ۱-۳: ژبه یوه ټولنیزه او دنده یي پدیده ده.

ژبه د ښو د یو عوامل په بڼه یوازې انسان پخپله ټولنه کې زده کوي چې دهغې په مرسته خپل اندونه (فکرونه)، غوښتنې، انګېرنې او ننګېرنې (خیالات او احساسات) نورو همځېلیو (همنوعانو) ته څرګند کړي او په دې توګه سره د پوهولو او راپوهولو اړیکې وساتي. د همدې له مخې وایو چې:

ژبه یوه دنده یي (کسبي)، تړوني (اتفاقي)، ټولنیزه او مدني پدیده ده، نه فطري او طبیعي او عضوي چې مخکې له مخکې د انسان په خټه کې اخښلې چار اوسي؛ لکه سهېنز، سایېز او وژېز (هضمي، تنفسي او عصبي) جوړښتونه او د هغو چارونه. دا چې موږ د خپلو غړو لکه د (ژبې، اوربو، غاښونو، شونډو، تالو، ستوني، مرۍ، سږو او داسې نورو) په وسیله غږ بېږو او په دې توګه یې غږیږو، یا ژبني غږي بولو، دا مانا نه لري چې ګوندې دغه غړي له آره (بالاصل) د همدې دندې لپاره جوړ شوي دي، بلکې هر یو ځانته جلا-جلا بیولوژیکي او طبیعي دندې لري لکه خوراک، څښاک، ساایستنه او داسې نور. او ژبنه دنده یې څرمه او ضمني دنده بلل کېږي، هغه هم په کسبي ډول په کړو او تمرین سره.

## ۱-۴: ژبنی چار (عملیه) څنګه ترسره کېږي؟

کله چې یو څوک (غ)، وغواړي، یو څه (څ)، پر ژبه راوړي، لومړی یې په مغزو کې یو غږ انځور (ځ)، جوړېږي، چې یو روحي چار دی، ماغزه غږبیز غړي په کار اچوي چې دغه (ځ)، د ساه او...

بهرنۍ هوا په مرسته د غږ په څپو بدل کړي. په دې توګه د
همامغه مطلوب (ځ)، ذهني غږ انځور د ویلو او اورېدلو وړ ګرځي
او کېږي یا ژبنی چارتر سره کېږي. نو که غږ پېدونکی (غ)،
غواړي، هماغه (ځ)، بل یو چا (ا)، ته څرګند کړي. په بله وینا (ا)،
د (غ)، خبرې واوري. همدا چاره په سرچپه ډول پای ته رسېږي:

له غوږه نیغ مغزو ته د (ځ)، فزیولوژیکي لیږد او بیا په مغزو کې له
(څ)، سره د (ځ)، روحي سازښت. نو که اورېدونکی (ا)، پرخپل وار هم و
غواړي له غږ پېدونکی (غ)، سره د غږ پېړي، نو دغه (ا)، له غوږه د غږ پېدونکي
(غ)، تر غوږه پورې په هماغه لار ورځي. لکه پاس چې څرګنده شوه: نو په دې
توګه د امر که یا خبرې اترې په لاندې ډول انځوروو:





## ۱-۵: آرا او رښتيني ژبني توکونه:

د ژبې اصلي او رښتيني توکونه هماغه غږونه او غږ غونډونه دي چې څرګندوني (مخابروي)، شعوري او سمبوليک خصوصيت لري. هيجاني چيغې که څه هم څرګندوني کيداى شي مګر سمبوليک ورته ويلاى نه شو. د درد يا خوند، خوښۍ او د غه راز انګيزې (طبيعي اصوات) چې شعوري نه شي ګڼل کيداى، بلکې يوازې د ټولنې له خوا په اتفاقي ډول ديو څه څرګندولو لپاره تشکل شوي دي. که چيرې يو يوستوى غږ د ژبني توک ځانګړتيا ولري، هغه به هرومرو د وي يا څو غږونو ټولنيزه وي. لکه: ننداتيه (آ)، يا انګليسي (a)، چې د (يو) مانا ورکوي.

## ۱-۶: ژبني څېړنه د غږونو څېړنه پيل کېږي:

غږ او ژبه، غږ پوهنه او ژبپوهنه:

ژبپوهان په ټوليزه ډول ژبه د انساني مجرد او ذهني نظامونو ديوې پېچلې مجموعې په ډول راپېژني چې د انساني مغزو له زېږوندو څخه ګڼل کېږي او د وګړو ترمنځ د اړيکې ټينګولو لپاره په کارېږي.

د دغې پېژند (تعريف)، له مخې ژبه يوه مانيزه او ناتوکيزه (غيرمادي) پديده ده. له بلې خوا دا چې غږ هوايي څپې دي، نو مادي ګڼل کېږي.

له دې کبله وايو: غږ يوه توکيزه سنګارنده (پديده) ده چې د غوږ له لیارې تنګيرل كېږي او نه شي کيداى چې د ژبې د ذهني نظام يو توک و شمېرل شي. له دې ټولو څرګندونو سره غږ د يوه داسې توک په توګه له ژبې

سره اړیکي پیدا کوي چې ژبني نظامونه یې را څرګندوي. په دې توګه ویلای شو چې: د غږ او ژبې ترمنځ هماغه ډول اړیکې دي، لکه د یوې موسیقۍ آلې د یا د سندرو (نوټونو) د غونډ (مجموعې) او ذهني د اجرا شویو نغمو ترمنځه. په بله وینا غږ د ژبې د مانیزو (مجردو) ذهني نظامونو لپاره یوه توکیزه ننګېرلې (محسوسه) او ګړنۍ بڼه ده.

څنګه چې د ژبپوهنې په څېړنو کې د ژبې د مجردو او ذهني نظامونو څېړنه په عملي توګه په ژبنۍ ماده کې د دغو نظامونو له ښکارندویه برته کېدونې نه ده، نو هرو مرو ژبنۍ څېړنې د ژبې د غږونو له څېړنې سره پیل کول په کار دي. له دې کبله غږپوهنه باید د ژبپوهنې د هغو سرېزو په لړ کې وشمېرل شي چې لوستنه یې د ژبنیو پلټنو لومړی اړ (شرط) بلل کېږي.

پر دې سربېره څنګه چې په غږپوهنه کې د غږیزو پلټنو ډګر په هغه ډول غږونو پورې محدود دی چې یوازې په ژبه کې په کار لوېږي او نا ژبني غږونه له آره په غږپوهنه کې تر څېړنې لاندې نه راځي، باید وویل شي چې غږپوهنه په ژبپوهنې پورې یوه تړلې پوهه ده. په دې ډول ژبه یوه یواځینۍ ذهني پدیده ده، له دوو بېلابېلو مادي څرګندونو سره چې یو وییزه بلل کېږي او بله اوریزه (حقشناس ۱۳-۱۴).

## ۱ - ۷ : د غږ او لیک یا ژبې او لیک ترمنځ اړیکې :

لیک هم لکه د غږ د یوه داسې توک (مادي) په توګه چې غږیز نظامونه رااخلي، له ژبې سره اړیکې پیدا کوي. د همدې یې یو له مخې له لیک سره د ژبې اړیکې هماغسې یو اړیکې دي، لکه د غالۍ د نقش او ذهني او بدلې بڼې ترمنځه اړیکې. مګر دا اړیکې له هغه اړیکې سره توپیر لري.

چې د غږ او ژبې ترمنځ شته والی لري. ځکه د غږ او ژبې ترمنځ اړیکې سیده او نېغې واسطه دی، هغه په دې ورو سته لاسو نه وښودل شي (لیلو نو):

۱-۷-۱: د هر دول لیک تر اختراع د مخه ژبې په سلو نو او سنا یې په زرو کلو نو له غږیز و نښو څخه د خپل پوازینۍ مادي څرګندوی په توګه کار اخیسته. په داسې حال کې چې د لیکنیو نښو (سمبولو) کارونه څه ناڅه یوه نوې پېل پېښه ده چې تاریخچه یې له څو زرو کلونو څخه تېرې نه کوي.

۱-۷-۲: لیک د ژبې د غږیزو نښو د لیکنۍ لپاره اختراع شوی او د همدې کبله لکه چې د مخه وویل شول لیکنۍ نښې د غږیزو نښو له لارې په ناسیده دول له ژبې سره اړوندې (مربوطې) کېږي.

کوم لاسوندونه چې د دغې خبرې لپاره وړاندې کېدای شي دا دي چې هر کله په یوه ژبه کې ستر غږیز بدلونونه رامنځ ته شوي دي د هغې ژبې د لیکنیو نښو بدلون ته هم اړتیا پیدا شوې ده. که څه هم دغه کار په ډېرو ژبنیو ټولنو کې له ځنډونو سره مخامخ شوی دی. چې غوره بېلګې یې د انګلیسي او فرانسي لیکنې سیستمونه دي او دا چې یې لیکونو له ژبنیو بدلونو سره هېڅ کوم بدلون نه دی موندلی او ستونزې یې رامنځ ته کړې دي. په نورو خپلوانو ژبو لکه الماني، اسپانیې، ایتالیې، روسي، بلغاریې ... کې بیا څه ناڅه له ژبنیو بدلونونو سره لیکنۍ سمونونه راغلي دي او تر دا منځ وا تن لږ شوی دی. خو په سرچپه دول داسې هېڅکله نه دي شوي چې لیکنی بدلون پر ژبنۍ غږیز نظام کوم اثر ښندلی وي. له دې کبله ویلای شو چې لیکنۍ نښه د ژبنیو غږیزې نښې لپاره لیکنۍ نښه ده. یا په بله وینا که غږ د ژبې ښکارندوی دی، نو لیک د غږ ښکارندوی دی.

۳-۷-۱ـ د لیکنیو نښو (توړو) د په کارا چولو لپاره کېدای شي د انسان له بدني غړو پرته له نورو وسیلو څخه هم ګټه واخیستل شي. په داسې حال کې چې د - غږیزو نښو کارونه له غږیزو غړو پرته کېدونکي نلري. له دې کبله ښکاریږي چې ومتو د ژبنیو غږونو کارونه ډېره اسانه او بې سرخوږه ده او لکه په کاغذ، قلم او نورو وسیلو پورې تړلې نه ده. نو باید غږ ونه تر لیکنه او ښکاره وي. بل دا چې لومړني انسانان د لوښو (ابزارو) له پلوه تل په تنګسه کې وو او تر لیکه ورته غږیدا اسانه وه، که څه هم پخپله ژبه یو - لوښی ګڼل کېږي او د نورو لوښو له جوړېدنې او پرمختګ سره یې سمه رغېدنه او پرمختګ موندلی دی.

۴-۷-۱ـ غږیزې نښې د ژبنیو نظامونو په څرګندونه کې زیاتې دقیقې دي او په دې برخه کې داسې امکان نه لري چې د لنډو وتنګو لیکنیو نښو له مخې سره هیڅ ډول پرتلې ورته دي. همدا خبره ده چې د ساري په توګه یو لیکلې غونډله (جمله) په هره ژبه کې کېدای شي په بیلابیلو چولو له بیلابیلو مانا وو سره ولوستل شي. په - داسې ډول هره غونډله چې ویل کېږي، یوازې په یوه بڼه لیکل کېدای شي. نو په دې توګه ویناپه هره ژبه کې تر لیکنې زیاته دقیقه ده.

همدا خبره ده چې ژبپوهان په خپلو څېړنو کې وینا ته زیات ارزښت ورکوي چې له غږیزو نښو څخه جوړه شوې ده، او له لیکنې څخه تر وسې - وسې. د ډېره کوي چې له لیکنیو نښو څخه رغېدلې ده. بیا هم د لاسوند (دلیل) دی چې په ژبپوهنه کې د ژبې ګرځې اړخ تر لیکنې هغه غوره دی او د ژبې ژوندیه - بڼه ګڼل کېږي.

۵-۷-۱ ـ همدا اوس په نړۍ او بیا په ځانګړې ډول زموږ پخپل هیواد کې لا ډېرې

ژبې شته چې لیك نه لري او د ژوندیو ژبو په توګه د خلکو تر منځ ویل کیږي او شمن ګړنی ادب لري، لکه نورستاني او یا پامیري ژبې.

۱-۸: **توري** (حرف): هغه د لیدو وړ انځور دی چې د یو اواز (۲-۷) یا څو اوازو د نوښکارندوی کوي.

۱-۹: **ابیڅې یا الفبې** (الفباء): د هغو ټولو توریو ټولګې ته وایي- چې د یوې ژبې د ټولو اوازو د نو انځورونه کوي. بشپړه ابیڅې هماغه ده چې د هر یوه اواز لپاره یوه نښه (توری) ولري. دغه راز ابیڅې ته غږیزه یا فونیمیکه ابیڅې وایي.

۱-۱۰: **لیکدود**: املا یا آرتوګرافي د یوه ټاکلي الفبایي- سیستم په چوکاټ کې د یوې ژبې د ویيو (کلمو) رسم، لیکدود او دود ته وایي. د ساري په توګه اوسني پښتو الفبایي سیستم کې ځینې توري د یوې په هره برخه کې د بل توري یا توریو سره یو ځای لیکل کیږي او ځینې یې په نیمګړې توګه یو له بله سره نښلول کیږي. سم لیکدود هماغه دی چې ترکیبونه پورې د یوې ژبې ویيونه داسې انځور کړای شي چې په لوستلو کې یې تېروتنې ونه شي. په بله وینا د توپیر او نه ګډون (علم التباين) آر (اصل) پکې پرځای شي. لیکدود له څه هم یو تړونې (قراردادي) بڼه لري او څنګه یې چې اړوند ژبپوهان او لیکوال وټاکي هماغه د اړوندې ژبې لیکدود بلل کیږي، مګر لکه څنګه چې ژبنی نښې (سمبولونه) د توپیر او نه ګډون پر بنسټ منځ ته راغلي دي، نو په لیکدود کې هم دغه آر (اصل) پرځای کول ضرور دي.

## ۱-۱۱: ژبه او ګړهار (language (langue) and speech (parole)):

لکه څنګه چې په (۱-۱) (۱-۲) او (۲-۱) کې ویل شوي دي، ژبه د انسانو ترمنځ د پوهونې او پوهېدنې یا محاورې وسیلې په توګه د تړونې (قراردادي)، غږیزو نښو یا سمبولو نوسیستم دی. مګر د نوې ژبپوهنې استادان چې سوسیور یې په سر کې دی، تر دغه نامه لاندې دوې نومونې سره توپیر وي، یو په خپله ژبه د یوې جوتې (مجردې) پدیدې او بله د ژبنې چار (ګړهار) په توګه، په دې ډول:

ژبه یا لنګویج (لانګ) هغه انساني اړتیاده چې د هغې په مرسته غږ بریږي.

او وینا، ګړهار- سپیچ (پرول)، ګړنې چار (عملیه) او جوته (مشخصه) څرګندونه ده (الرینس ۱۰۷).

ماریو پای (۱۶۰) وینا یا پرول داسې راپېژني: په یوه ټاکلې حالت کې د یوې ټاکلې یوګړي (فرد)، ژبې کارونې (استعمال) ته وینا یا پرول وایي.

## ۱-۱۲: د وینا توکونه (اجزای کلام)- Parts of speech:

هغه ټولې (کټګورۍ) دي چې په هغو کې د یوې ژبې ویيونه (۲-۲۵) ډلبندي کېدای شي، ځکه د دغه ډلبندي په غوښتله یې زه رغاونه (۲-۲۶) کې د هغې چار (فنکشن) له مخې وي او یا د هغې د بڼو او ړون ډول (طرز ګردان) او داسې نورو له مخې (ماریو- پای- ۱۶۱).

## ۱-۱۳: کړاوونه (تمرينونه)

۱-: ژبه څنګه مخ ته راغلې ده ؟

۲-: ژبه ولې يوه ټولنيزه او دنده يي (کسبي) پديده ده ؟

۳-: ژبنی چار څنګه ترسره کېږي ؟

۴-: ژبه ټوکيزه پديده ده له مانيزه ؟

۵-: ژبه اوليان سره څه اړيکی لري ؟

۶-: توری او غږ سره څه توپير لري؟

۷-: ابېڅې (الفبا) څه ته وايي ؟

۸-: د ژبې او وينا توپير سره څنګه کولای شئ ؟

۹-: د وينا ټوکونه کوم دي؟

۱۰-: له لومړني څېرکي څه موخه زده کړل ؟

## ۲- څېړکې: نوموني (اصطلاحات يا ترمونه) *Terminology*

۲-۱: **ژبه**: د غږيزو او ليکنيزو نښو (سمبولو) يو داسې کسبي او اتفاقي غونډال (سيستم) دی چې د يوې ټولنې وګړي يې يو له بل سره د پوهولو او راپوهولو لپاره پر ژبه راوړي او يو بل ته يې اوروي.

يا په بله وينا:

ژبه د يو لړ اختياري ويېزو او ريزو سمبولونو (علايمو) يوه مجموعه ده چې هر يو سمبول يې زموږ د يوه ذهني انځور رښکارندويي کوي. دا انځورونه د انساني چاپېريال او حال څېزونه (خاطرات)، پېښې او کړه وړه را اخلي. په دې توګه ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو راپوهولو يوه آله او وسيله ګرځي.

۲-۲: **ګړدود** (ګويش يا لهجه): د يوې ژبې هغه ځانګړې بڼه ده چې په يوې ټاکلې جغرافيايي سيمې، تاريخي پېر (دورې)- ټبر يا ټولنيز پوړ (قشر) او يا پاړکي (طبقې) پورې اړه لري. د هرې ژبنۍ کورنۍ له اره له يوې لرغونې مورنۍ ژبې څخه منځ ته راغلې ده. داسې چې د همغې مورنۍ ژبې بېلابېل ګړدودونه د مهال او چاپېريال له بدلون سره پر بېلابېلو خپلواکو ژبو واوښتي او په دې ډول يې يوه ژبنۍ کورنۍ رامنځ ته کړې ده.

۲-۳: **معیاري ګړدود**: که د یوې ژبې د ټولو ګړدودو له منځه یو ګړدود
ټولنیز - ورته یېز- کولتوري او سیاسي دریځ د لوړوالي له پلوه د دغې ژبې په سبکارندوې
د ورځني لیکنې استعمال لپاره انتخاب او وامرل شي، ادبي رسمي، عمومي پایه لنډ ړول
معیاري او کره ګړدود ګڼل کیږي او د دې په وړاندې نورې بڼې نامعیاري ګړدودونه
که څه هم دا ګړدودونه د معیاري ګړدود په پراختیا او بشپړوالي کې برخې نه دي.
د زماني په تیرېدو سره معیاري ګړدود د مربوطه ژبې تر هر یو ګړدوده زیات -
بشپړ او بډایه کیږي. نور ګړدودونه ورو- ورو تر اغیزې لاندې لوېږي او په پای کې
یې نښتوي یا په بله وینا هغه ټول په خپل ځان کې ځایوي او بیرته یو تقریبي لهجوي
ژبني یو والی منځ ته راوړي ځکه هغه مهال بیا ګړدودي بریدونه (وییز، ګړني،
ګرامري او لکزیکي توپیرونه) په خپله ړنګیږي او بیرته یو عمومي ګډ سیستم (ژبې) ته
اوړي.
د پرانسې نومیالي ژبپوه هاند خبره تر سبا ګړدودي توپیرونه د یووالي خواته
روان دي او تر انشعابه یې د اتحاد کیدون ډېر دی. (اندرې مارتین-۵-۱۴) ۰
رښتیا هم اوسنی علمي او تخنیکي پرمختګ د دې سبب شوی دی چې نه یوازې
د یوې یوازینۍ ژبنۍ ټولنې د غړو ترمنځ بلکې د ټولې بشري ټولنې داوسیدونکو ترمنځ
اړیکې ټینګې شي او د دې پرځای چې د ا ر ز توپیرونه زیات شي، په سرچپه ډول
ورو- ورو لرې کیږي.

## ۲-۴: څنځیري واحدونه:

هغه دي چې د ګړهار په بهیر کې پر له پسې او پیوست راځي. په بله
وینا، له ګړهار د خپلې لوښې له مخې یو څنځیر و ګڼو، نو دغه راز یوونه یې د

بېلابېلو کړنو په څېر پرله پسې پیوست او په سره نښتي ډول راڅرګندېږي او هر یو یې د جلا غږ په نامه بلل کېږي. له همدې کبله د غوغږ وتونه څنځیري یوونونه (واحدونه) هم ویل کېږي (حق شناس ۴۹).

## ۲-۵: ناڅنځیري واحدونه:

هماغږ ((رنګارنګیو)) ته وایي چې یې له ژبني آر یا اصل ((پرله پسیوالي)) منلود غږونو، ویپونو او توریو ژبنیو توکونو (اجزاوو) ترمنځ پېښېږي او په دې توګه د مانا بېلابېل تیاره اړخونه څرګندوي یا په بله وینا داسې ژبني یوونونه (واحدونه) دي چې د ګړهار په بهیر یا څنځیر کې جوت ځای نه لري بلکې کوالي شي ځینې نابی وبنجوي (عوض کړي))، او نه د ځانته جلا (مستقلو) څنځیري یوونونو په شمار کې راځي لکه: فشار یا زخم، اهنګ، بېلتون او پیوستون یا فصل وصل - زیروبمي، وزن، ریتم او داسې نور.

## ۲-۶: اواز، واج = واک (phoneme):

د ژبې تر ټولو کوچني غږیز توک (عنص) ته وایي چې په ځپله کومه مانا نه لري مګر په مانیزو توکونو (ویپونو) کې مانیز توپیر پېښوي، د ساري په توګه: (ت) په پښتو کې یو اواز دی چې یو ویي (لغت) یې لکه (تور) له یوه بل ویي، لکه (پور) څخه توپیر کړی دی. پښتو له ۳۶ اوازونو څخه جوړه ده او د زین له مخې لا نور ډولونه لري.

۲-۷: **خپلواك- ویل** (Vowel) : هغه اواز ته وایي چې

راپیدا کیدل یې بې له کوم ستر هوایي بندیزه ترسره کیږي لکه: ا، و، ی...

۲-۸: **بیواك- همخوان- کنسونینت** (consonent) :

هغه اواز ته ویل کیږي چې له راپیدا کیدو یا په بله وینا له خولې څخه د راوتو پروخت د ساهوا له بندیز سره مخامخیږي، لکه: ب، پ، ت

ټ....

۲-۹: **نیمواك نیم واکه** (semi vowel) :

هغه اوازدی چې د خپلواك او بیواك دواړو د نده پرځای کوي او د دواړو ځانګړتیا وې لري، یا په بله وینا که په یوه څپه (۲-۲۱) کې د - زیږي یا هستی (حرکت) کار ورکړي، د خپلواك بڼه غوره کوي، که نه د بیواك. لکه منځنی اواز په ببل ( bel ) او بیا ( bya ) کې یا لکه (و) په ګول (gol) او gwal کې. پښتو نیمواك اوازونه (و-w) او (ی- y) دي.

۲-۱۰: **غبرګغږ- واکۀ مرکب** - diphthong :

هغه ته وایي چې د خپلواك او نیمواك په ملګرتیا منځ ته راځي او لکه - یوستوی اواز یو وار پټلیز له خولې نه راوځي، د یو غبرګغږ لومړی توکی یو خپلواك او دویم توکی یې یو نیمواك اوازوي، لکه زوړ والی (ay)، او زوړکي والی (əy)، او د اسې نور.

## ۲-۱۱: بلغږ - واجګونه – allophone:

د یوه یوازینې اواز (۲-۶) بېلابېل بڼې یا بڼې ته وايي چې د راز راز څپو په بېلا بېلو برخو (پیل - منځ - پای) یا د څنګاوازونو په ګاونډ کې رامنځ ته کېږي. لکه: (ب) چې په (بن) کې یو راز (ساینز) ویل کېږي، په (غبرګ) کې بل راز (لږ ساینز)، په (خوب) کې بل راز (ناساینز) او په یوه ترلي یا بیواکه غوږ (کلستر) لکه (برم) کې یو ډول (لږ ساینز) او په واژه څپه کې، لکه (به) کې بل ډول (ساینز). په دې توګه یو یوازینی اواز (فونیم) څو څو بلغږونه د رلودای شي.

## ۲-۱۲: فشار یا ځج - تکیه accent = stress:

هغه چار (عملي) ته وايي چې د ژبنیو توکونو په لړ کې یو توک په زیاته زور او شدت وویل شي. په بله وینا فشار د زینږ د له پلوه د هوا په فشار د بدلون د ځانګړتیاو له ترکیب، د زیروبمې د ګچې یا د ځجې له تو پیراو په خپلواکېز (والي) راکښون ګاله تو پیر څخه منځ ته راځي او د اوریدنګ له پلوه زیات رسا والي ته وايي. د امانا چې په زیاته رسا توګه یو ژبنی توک وا اوریدل شي. په هرغږیز بهیر کې هغه څپه څخه بلل کېږي چې د زینږ یې وخت تر نورو ګاونډیو څپو څخه په زیاته کچه پورتنی ځانګړتیاوې ولري. د ژبنیو توکونو یا غږیز څپو د زیاتوالي او کموالي له پلوه

دري ډوله فشار و ته سره توپیر و لای شي:

غونډله ییز (جملوي) فشار - ویيز (لغوي) فشار او څپیز (هجایي) فشار، لکه: (زه پوهنتون ته ځم za pohantún ta ʒam) کې پر (ل)، فشار راغلی دی. بیا چې که یو له غونډله (جمله) په پام کې ونیسو غونډله ییز فشار بلل کیږي. که ارونده ویي (پوهنتون) په پام کې ونیسو، نو څپیز (هجایي) فشار نومول کیږي، په بله وینا په لومړۍ برخه کې وایو د دغه غونډله (زه پوهنتون- ته ځم) دلوړو غونډلو په ترڅ کې یو ځجنه غونډله ده چې په دویم ډول کې د (پوهنتون) ویي دلوړو ویيو (زه - ته - ځم) ترڅنګه یو ځجن ویي دی او په همدې توګه (تون) دویي دلوړو څپو (پو - هن) په پرتله یو ځجنه څپه.

## ۲-۱۳: زیروبمي - pitch :

زیروبمي له پرلپسیوالی (تواتر) او د ریږد اله پلوه پراخوالي منځ ته راځي: هرڅومره چې د تواتر شمېر زیات وي، غږ هغومره زیر- او هرڅومره چې لږ وي غږ هغومره بم او ریږدل کیږي. له پلوه چې د ریږد الفن پراخه شي غږ هغومره رسا او هرڅومره چې لنډه، تنګه شي غږ هغومره نارسا او ریږدل کیږي: په دې توګه غږ یا زیروي یا بم، همغې یو ډوله ولید ونکی یا جګید ونکی او- داسې نور...

## ۲-۱۴: اهنګ - intonation :

اهنګ د زیروبمۍ یو ډول دی. د اهانا کله چې د ګړهاریه بهیر یا او ږدو کې د زیروبمي د پراختیالس دغونډلې (جملې) په اندازه وي، همغه زیروبمي اهنګ بلل کیږي. اهنګ په پښتو کې ژبنی ارزښت لري د سارې

په توګه خبري او ناخبري غونډلې سره توپیر وي، د خبري هغې اهنګ ولیدونکی. او د پوښتني هغې جګیدونکی ... دی. (حقشناس ۱۲۷).

۲-۱۵: بیلتون او پیوستون - فصل و وصل یا درنګ:

بیلتون او پیوستون دا مانا چې د ژبنیو توکونو په لړ یا د ګړهار په بهیر کې د وه غږ.ه (اوازه) دوې څپې، دوه ګړونه، دوه ویپونه، دوه غونډونه (فقرې)، یا د وې غونډلې سره پېتلیږي (پیوستې) وویل شي او یا نا پېتلیږي. یا په بله وینا د دغو ژبنیو توکونو په لړکې د دوو توکونو ای او پیل سره نښتي او یې ځنډه وویل شي، یوه تاکلې مانا ښندي او که یې په ځنډ او لارېڅې سره یو له بله جلا وویل شي، یوه بله مانا ونجون منځ ته راوړي. د ساري په توګه که په (باري چتک رانغی) غونډله کې (باري چتک)-پېتلیږ ولولو یا و وایو (چتک) له (باري) سره یو نوم جوړ وي، که نه (چتک) ګړول ګرځي.

۲-۱۶: څپه - هجا - syllable:

څپه هغه ژبنۍ یوون (وحد) دی چې یا یو خپلواک (۲-۷) وی او یا له یوه یا څو بیواکو (۲-۸) څخه جوړ وي او په یوځایي ډول له خولې-راوځي. لکه په (ابا)، کې چې دوه زږي (خپلواکه) لري لومړی څپه (الف) او دویمه (با) ده. یا ښخوند (ˇsxwand) چې یو زږي (a) لري او پنځه بیواکه او په دې توګه یوه او ږد څپه ګڼل کیږي. هر څومره بیواک اوازونه چې سره یو ځای شي او خپلواک اواز ور سره

د ژړې په توګه ملګرې نه شي، څپه جوړولای نه شي، ځکه بې له ږغه زږې څپه هم د ویل (تلفظ) کیدای نه شي. په پښتو کې د څپو او بږدو الې او لنډو والی کوم ژبنی ارزښت نه لري، نه ماناییز بدلون پیښوي او نه هم شعري وزن کوم اغیزښند لای شي. هسې خو بې له هغې هره څپه مانا واله نه وي. د ساري په توګه (ا تې- ز- ه) په ډېږه کې د ریواره څپې هر یوه ځانته جلاجلا مانا نه لري، بلکې په ګډه یو ماناییز توک (ونې) جوړوي. مګر کوم یوه مانا واله څپه ده یا په بله وینا یو وي (۲-۲۵) دی او له دې سره یو ګړ (۲-۱۹) هم دی.

حقشناس (۱۳۷) څپه یا هجا داسې راپېژني:

څپه یو مرکب غږیز یوون (واحد) دی چې له یوه یا څو څنځیري (۲-۴) او یو یا څونا څنځیري (۲-۵) یو ویونو څخه رغیدلې وي. څپه یا وازه وي یا تړلې.

۲-۱۷: **وازه څپه**: هغې څپې ته وایي چې له یوه خپلواکه جوړه وي او یا په یوه خپلواک بای ته رسیدلې وي. لکه: ا- به- ته- شنه- بیا- غوا پرې- هو.

۲-۱۸: **تړلې څپه**: هغې ته وایي چې په یوه بیواک بای شوې وي. لکه: کور، خوند، شخوند، ورځ، خور، خوږین، څپل، برګ، غبرګ.

۲-۱۹: **ګړ- واژک** morpheme: ګړ یا مورفیم د ژبې تر ټولو کوچنی ماناییز توک (عنصر) دی چې د څواوازو (۲-۶) له یو ځای کیدو څخه لاس ته راځي او له شنن کیدو څخه یې ساده اوازونه یا په بله وینا بې مانا توکونه. که- یو ستری ساده او از مانا ولري، هم ګړ بلل کیدای شي، خو هغه به هرو مرو

د يوځخراني اوازغونډلني يزوي (۱-۵).
ژبني شننه هم له آره په ګروپو کېږي نه په بې مانا غږيزو ټوکونو (اوازونو). ځکه د ژبې لنډانيز جوړښت سره چې رښتينې ژبنی جاج (مفهوم) او ماهيت جوړوي، اړيکي نلري. يوګړ پر ځنځيري يووټوټو (۲-۴) سرپړي تا ځنځيري (۲-۵) هم پېچيل جوړښت يې لري لکه فشار او داسې نور.
ګروپونه پر ازاد واو تړليو ګروپو ويشل کېږي يا په بله وينا پر او ډېډو نو او نا ورېډ ونو بېلېږي:

۲-۲۰: **ازادګړ**: چې په ژبني بهير کې په ازاده او خپلواکه توګه يوه مانا ونښندي لکه: کورونو مونه، کرونه او کرولونه (قيدونه) نازا ګړونو په ولونه جوړوي.

۲-۲۱: **تړلې ګړ**: چې د ګړهار په بهير کې يا د يو مليزيږون روڼې، يو ټوټ وي، لکه (وال) په کليوال (ين) په خاورين (ين) په اخيزکې او داسې نور تاړي او يا د يې ټوټ نه وي، بلکې چار او مانايي د خپلواکو ونډو ويوونو (وييونو) په ملګرتيا سرو ځرګندېږي لکه: تم، نه، و، او، بسره او داسې نور وييکي.

۲-۲۲: **بلګړ - واژګونه** allomorph:
بلګړ او الوموړف د يوه يوازيني ګړ (۲-۱۹) بېلابېل ډول يا بڼې ته وايي لکه: (يې) په بېړه يا يي کې چې د دښتي غږنډي په يوه وييکي د (ی) يو بلګړ بلل کېږي يا لکه (يم) په اتيايم کې چې خلورم غونډي په يو ويي کې د (م) بلګړ ګڼل کېږي. د لته بنسټيز يا آر (اصلی) ګړ هم (əm) دی.
همداسې يزا او ييزهم دروا خله!

بلګرونه د یوګړ غړي دي چې د یوې ګرامري قاعدې (کټیګورۍ) څرګندوی وي او دغه ډول پېر د غږیز چاپېریال له کبله منځ ته راځي. یا په بله وینا کله چې په یو سیلابیک جوړښت کې دوه ګړونه یو ځای کېږي، د ژبې هغه دي ته وي چې د بیواکو یا خپلواکو د تراکم یا پرله پسې والي د مخنیوي لپاره په منځ کې خپلواک یا بېواک اواز ور ولېږي، بلکې په (بیلول) کې (-ول) د (چلا کول) د (-کول) په وړاندې او یا د (خوانان) او (خانان) د (ان) ترڅنګه د (ملایان) او (میرزایان) (-یان) او د (بوډاګان) او (بیزګان) (-ګان) او داسې نور دي، په دې مانا چې دلته د یوګړي (جمع)- وروستاړي له آره (ان) دی او (-یان) او (-ګان) یې بلګرونه دي.

## ۲-۲۳، ګړاواز-مرکزتك واژه *morphophoneme*:

هغه اوازونه چې د یوګړ د بېلابېلو غړیو (بلګرونو) په توګه یو پر بل اوړي. او یا یو د بل ځای نیسي. داران او ښتو نونو ته مورفوفونیمیکي بدلونونه وایي.

## ۲-۲۴، ګړاوازپوهه-مرکزتك واژه‌ها *morphophonemics*:

د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې په هغه کې د یوې ژبې ټول ګړاوازونه او مورفوفونیمیکي او ښتو نونه (همرنګي- ناهمرنګي...) تر څېړنې لاندې نیول کېږي. په هغو ژبو کې چې نوموړي او ښتو نونه دومره زیات نه وي. نو دغه وبینه د ګړپوهې (۲-۱، مخ ۵۰) په ترڅ کې راځي. لکه په پښتو او دري کې.

۲-۲۵: **ویی، واژه** (لغت یا کلمه) – word: ویی د غږپوهنې (۲-۱۰۲) له مخې د یوه مرکب غږیز یوون (واحد) په توګه پېژندلای شو چې له یوې خوا له یوې یا څو څپوالو، بلې خوا له یوه یا څو ګړوتوکو څخه رغېدلی وي. یوازګړ (۲-۱۹) بې چې له یوې یا څو څپو څخه جوړ وي، یو پرستوی او ساده ویی هم دی.

ځینې ژبپوهان ویی هغه خپلواکه مانیزه ټوټه یا یوون بولي چې پر نورو مانیزو ټوټو یا یوونونو نه شنل کېږي یا یې د دود له مخې څوک شنل نه غواړي.
لکه: کور، مور، سپوږمۍ، کورنځه، پوهنتون، پاک زړی، پسرلی، شیرشاه مینه، سید نور محمد شاه مینه او داسې نور.

۲-۲۶: **غونډله یا جمله** – sentence: غونډله یا جمله یو داسې مرکب غږیز یوون (واحد) دی چې له یوه یا څو وییو (کلمو) څخه رغېدلې او د یوه یا څو ناخبري (۲-۵) یو توکو په مرسته یې یو ول یووالی څرګند شوی وي (حقشناس ۱۳۲).
د یو ستر وییونو ګړوتو یو داسې پوړلی (منظم) ټول (کل) دی، چې یو بشپړ جاج (مفهوم) او موخه (مطلب) پرې لېږدول کېږي او پوهول کېږي.
له بلې خوا چې خبرې اترې یا وینا (ګړهار) په غونډلو کې ترسره کېږي، په یله وینا لومړی ځل په غونډلو شنل کېږي، نو غونډلې ته د وینا (۱-۱۲) یوون هم وايي.

۲-۲۷: **غونډ - فقره یا ګروه یا عبارت**: غونډ د یوې غونډلې (۲-۲۶) سیلابیلې ټوټې ته وايي چې له یوه یا څو ازادو (۲-۳۰) او تړلو ګړوتوکو (۲-۳۱) څخه رغېدلې وي، او راز راز ډولونه لري، لکه نوموال غونډ، کړوال غونډ، کړوالغونډ او داسې نور.

۲-۲۸: **د غونډلې توکونه (اجزای جمله)**: د غونډلې توکونه (اجزا) پر آرو او مرستیالو توکونو ویشل کېږي.

آر توکونه، لکه نوموړنه (څېرنوموړنه، ستاینوموړنه، شمېرنوموړنه او نومځری)،

کړونه یا فعلونه (آرا و مرستیال، اشتقاقي او ترکیبي)
اوکړولونه (قیدونه).
مرستیال توکونه: په دې ډله کې هغه نا وړېدونې (نه ګردانېدونکي)
ګړونه یا په بله وینا ویېکي (ادوات)، لکه اړېکوېیکي (حروف ربط)،
تړوېیکي (حروف عطف)، سربلونه (پیشینې) او سټربلونه (پسینې)، بلنوېیکي
(حروف ندائیه) او داسې نور راځي.

## ۲-۲۹: نوموونه:

هغه ازاد او وړېدونې ګړونه یا وییونه (۲-۲۵) دي چې بې له زماني اړیکي
څخه یې مانا ښکارندېداى شي، لکه: کور، اور، اوبه، تور، سپین،
یو، دوه، زه، ته او داسې نور. نوموونه یا نوموالې د له پر
لاندې ټولیو (کټګوریو) ویشنه موږ:

## ۲-۳۰: ښیزنوم (اسم) یا substantive:

ښیزنوم یوداسې نوم دى چې ښېژ پرېنغه د یوه ښیز یاسبکارندېد (پدیدې)
نوموونه (نامګذارې) او ښکارندوونه کوي او دااوروسته د ولونه لري:

## ۲-۳۱: پژنوم (اسم ذات):

هغه نوم ته وايي چې په ننګیرېدونکی (محسوس) ښیز اړه ولري.
په بله وینا یو داسې ښیز و نوموي چې زموږ په حواسو حس کېداى
شي، لکه: ډبره، لرګی، اوبه، غوا، غبز، بوټي او داسې نور.



## ۲-۳۲: مانانوم (اسم معنی):

هغه نوم دی چې په یوه نه شکېدونکي (غیرمحسوس) څیز یا په لنډه وینا په یوې سبکارندې (پدیدې)، اړه لري او هغه نومونه دي لکه: دروغ، رښتیا، پت، هیله، مېړانه، رخه، سخه (کینه) خوښي، ویر، اندیښنه، درناوی، بدي، نېکي او داسې نور.

## ۲-۳۳: ټولنوم (اسم عام):

داسې څیز یا سبکارنده نومي چې ځانګړی او خاص نه وي بلکه د ټولو او ډلو ته ولري لکه: ونه، هلک، نجلۍ، هیواد، ښاروي، وګړي، اولس، ترون، ژمنه او نور.

## ۲-۳۴: ځانګړنوم (اسم خاص):

چې یو ځانګړی څیز، پدیده، وګړي یا ځای نومول لکه: پښتوژبه، پښتونواله، خوازک، زرمینه، ننګرهار، کندهار، پکتیا، هند، ایران او نور.

## ۲-۳۵: توکنوم (اسم جنس):

چې په یو شمېر یو رنګي څیزاړه لري لکه: زر، اوبه، اوسپنه او نور.

۲-۳۶: غونډ نوم (اسم جمع):

چې يوه ډله او غونډ نوموي، لکه: ټولی، ټولګی، ګوند، ټبر، ګوډم (پاده)، رمه او داسې نور.

## ۲-۳۷: انګينوم (اسم صوت):

چې د طبيعي يا مصنوعي اوازونو انګې يا انګازه (پژواك) نوموي لکه: درز، دروز، درزی، د رزهار، درزا، ګرپ، ګروپ، ګرځی، ګرپا، ګرپهار، ترپ تروپ.

## ۲-۳۸: ستاينوم (اسم صفت) يا adjective:

چې په ځينو ځانګړو د ول څه نه نوموي، بلکې د يو څه ځرنګوالی نوموي، يا په بله وينا يو ستاينوم په يوه څيزنوم آړه لري او د هغه ځرنګوالی ښيي، لکه تور، سور، غټ، ووړ، تور، سورسبکلی، سبا يسته، غښتلی، کمزوری، روغ، ناروغ او نور.

## د ستاينوم ډولونه: په دوه ډوله دی: لر (۲-۴۰) او لنډ (۲-۳۹):

۲-۳۹: لنډ ستاينوم: هغه دی چې تر څيزنوم دمخه او ورسره راځي او لنډ په لنډه يې ستايي، لکه: توره ډېره، روغ سړی، سبکلې نجلی او.... دلته توره، روغ، سبکلی .... لنډ ستاينومونه دي.

۲-۴۰: لرستاينوم: هغه دی چې تر څيز نوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مسند) سره پيوستون لري، که څه هم هماغه څيزنوم ستايي، لکه: ډېره توره ده، سړی روغ دی، نجلی سبکلې ده .... دلته هماغه ستاينومونه (توره، روغ، سبکلې...) لرستاينومونه دي.

## ۲-۴۱: شمیرنوم (اسم عدد - nomerale):

شمیرنوم هم د ستاینوم غوندې په خپلواک ډول کومه نومونه نه کوی بلکې په یو څیزنوم آړه لري، خود ستاینوم غوندې یې څرګوالی نه، چې څومره والی او پوړ والی (تدرج) ښیي لکه، یو، دوه، درې... یا لومړی، دویم، دریم - څلورم...

## ۲-۴۲: آرشمیر (اصلي عدد):

لکه: یو، دوه - درې، څلور....

## ۲-۴۳: پوړشمیر (وصفي یا رتبي عدد):

چې د خپل شمیرلي پوړ او رتبه ښیي لکه لومړی، دویم، دریم، څلورم...

## ۲-۴۴: وورشمیر (کسری عدد):

چې د اړوند څیزنوم (شمیرلي) ماتوالی او برخه والی ښیي لکه دوه یمه، دریمه څلوریمه...

## ۲-۴۵: ویش شمیر (انقسامي عدد):

چې د اړوند څیزنومونو، ویشنه او جوړه، جوړه کونه څرګندوي او په دې توګه د وور شمیرغوندې له یو ګړیو (جمع) څیز نومونو سره اړه لري نه له یوه سره، لکه: یو یو، دوه دوه، درې درې، څلور څلور....

## ۲-۴۶: اټکل شمیر (تخمیني عدد):

چې دیوه څیزنوم پرځای غبرګ، غبرګ څیز نومونه ښیي او یوهم نه ټاکي، لکه: یو دوه، دوه درې، یودرې، درې څلور، لس یو لس، شل دیرش، څلویښت پنځوس، پنځوس شپیته او...

## ۲-۴۷: نومځری:

هغه ویې دی چې د یونوم ښکارند ویې کوي، د هغه پرځای راځي او یا یې ملګرتیا کوي او د هغه نځي دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نیسي.

له نورو نومونو (ځینو نومو ـ ستاینوم، شمېرنوم) سره د نومځري توپیر دادی چې دا پر ځای ږدي ګوندو اړخو (نوږدي، ګنې او پېږ) سر بېره د وګړي (لومړي، دویم او دریم) له مخې هم اوړون مومي. (وینفرید اولریش د ژبپوهنې قاموس ۹۴۲).

### ۲-۴۸: وګړیز نومځری (ضمیر شخصي یا personal pronoun):

هغه نومځري ته وایي چې یا د غږېدونکي یا غږېدونکو (لومړی وګړی) څرګندوي کوي یا د هغه چا چې ورسره خبرې کېږي (دویم وګړی) او یا د هغه چا چې ترې خبرې کېږي (دریم وګړی) د هغه راز نومځري په غښتلیو (زه، ته، دی) او کمزورو (مې، دې، یې) وېشنه مومي.

### ۲-۴۹: تولنومځری (ضمیر ملکي یا اضافي ـ possessive pronoun):

چې تول (ملکیت) او اړوندیا (تعلق) ښیي، دا هم په غښتلیو (زما، ستا، د ده) او کمزورو (مې، دې، یې) وېشل کېږي.

### ۲-۵۰: نخوتنومځری (ضمیر اشاره ـ demonstrative pronoun):

چې وګړي، څیز او یا پدیدې ته نخوته (اشاره) کوي یا د هغو د نومونو ځای نیسي او یا ورسره لکه ستاینوم ملتیا کوي، یوازې د دریم وګړي او واټن (لنډ، لرې، لالرې) له مخې اوړون مومي، لکه: دغه، هغه، هوغه...

### ۲-۵۱: پوښتنومځری (ضمیر استفهامي ـ introgative pronoun):

چې د یوې ځانګړې پوښتنې لپاره بکارول کېږي او د وګړي، مهال، توکي، څرنګوالي او څومره والي له مخې د ول ول دی.

## ۲-۵۲: پلوي یاکړولي نومځري یا (ضمیر سمتي یا قیدي):

چي له آره د یوه کړ (فعل) اړخ لوري یا پلو څرګندوي خو بیا هم کي
... یو ګړي سبکارندوي هم کوي لکه: را، در، ور.

## ۲-۵۳: ویکنو محري (ضمیر ذاتي):

چي له ویکو (ادواتو) څخه منځ ته راځي او دا هغه واړه ادات چې را وړ
... سره سم د نومځري ځای نیسي لکه: یکې، باندې، لاندې، ترې، پرې....

## ۲-۵۴: غبرګون نومځري (ضمیر انعکاسي - reflexive pronoun):

... صغه نومځري دی چې د یوچا رهم کړند او سي او هم کړی لکه: ځان،
... یه ځان مې ژوبل کړ. کی.

## ۲-۵۵: ناټیکنو محري (ضمیر غیر معین یا مبهم - indefinite pro):

... چي د یوه ناجوت (نامعین) وګړي یا څیز لپاره راځي لکه هر، بل، نور، ټول،
... واړه، دواړه، څه، څوځیني، هیڅ، څوک....

## ۲-۵۶: اړیکنو محري (ضمیر ارتباطي - reflexive pronoun.):

... چې په یوه غونډله (جمله) کې د تېرې یا راتلونکې غونډلې له یوه څیز، نوم
... یا نومځري سره راز راز اړیکي ټینګوي. پښتو په جولیز ډول یوا اړیکنو ځري
... (چې)، لري چې هم د څیز لپاره راځي هم د وګړي، مهال او ټولن لپاره.

## ۲-۵۷: کړ (فعل Verb):

... کړ تر نومونو وروسته د غونډلې له آر توکو نو یا یه بله وینا ازاد
... ګړونو څخه ګڼل کیږي. کړ یا فعل هغه ویې دی چې د مهال (زماني)
... یه چوکاټ کي د یوه څه پیښېدل نه څرګندوي، دا چې د کړ جاج (مفهوم

بې د زماني له ملګرتيانه پوهيدل کيږي نوځکه ورته مهال ويي يا (زماني اختري) هم وايي لکه ومې خوړ، خورم ...

۲-۵۸- آرکړ (فعل اصلي - main-verb):

هغه کړته وايي چې په جملو کې الله يا په بله وينا د غونډلې د بنسټيز توکي يا زړي په توګه د غونډلې خبر جوړ ولای شي.

۲-۵۹- مرستيالکړ (فعل معاون - auxiliary verb):

هغه کړته وايي چې له آرکړ سره د غونډلې د خبر په څرګندونه کې مرسته کوي او د يوه کړ يا چار بيلابيل اړخونه څرګندوي، لکه: کول، کيدل، اوسيدل، غوښتل. په مرستيالکړکې توانې کړيا مرستيال توانې کړ هم راځي چې په پښتو کې د دريو (توانستن)، يا انګليسي (can) غونډې جلا جوړښت نه لري بلکه له کول او کيدل، شول څخه د (آ-ی) په وروستاړي سره څرګندېږي، لکه: کولای، کيدلای شي.

۲-۶۰: کړنوم (مشتق فعلي يا حاصل مصدر - Verbal noun):

هغه نوم ته وايي چې د کړ پر بنسټ يا ټولی (ريښې) څخه جوړېږي لکه: خوړونکی، خوړلی، خوړنده....

۲-۶۱: کړنومی (مصدر - infinitive):

بيوکړم نوم چې په پښتو کې زياتره کړولی (۲-۶۲) او (ل) وروستاړي څخه جوړېږي او د دود له مخې پرې کړنومول کيږي، بې له دې چې ګردان شوي) کړغونډې په کومې زماني دلالت وکړي لکه خوړل څښل...

## ۲-۶۲ : کړولی (ریښهٔ فعلي - verbal root) :

د کړ همغه زړي یا هستې ته وایي چې په ټولو بڼو او زړونو (گردانونو) کې روغه رمته پاتېږي لکه: خور یا خوړ په خوړم - خوړل کېږي کې

## ۲-۶۳ : کړول (قید - adverb) :

همغه ژبنی توک دی چې د یوه کړ د پېښېدنې پر څرنګوالي یو ډول اغېزه اچوي یا د مهال او ځای له پلوه او یا یې د څرګندتیا، ټینګار او داسې نورو ځانګړتیاوو له مخې، آن یا نا وړپېښوي لکه: ژر، تل، ورو. نا آریا او پېښوي لکه، چټک، سست، توند، په بله وینا چې له آره نوموړي

## ۲-۶۴ : نومځروال کړول (قیدی ضمیر) :

چې له زړو کړولي (قید)، بنسټونو څخه جوړ وي، لکه: دلته، هلته، ورو بسته، چېرته، بېرته، وړاندې، پخوا، اوس، بیا، بېرله پسې.

## ۲-۶۵ : مرستیال کړول :

چې د یوې پېښې او کړن ځانګړتیا انځوروي، لکه: سبایې، باید، په خوښه، په زور، په کوزکې، په پوهنتون کې، په مني کې، په شپه کې...

## ۲-۶۶ : ایښی - (مبتدا یا مسندالیه - subject) :

غونډله (جمله)، لومړی پر دوو برخو وېشل کېږي، لومړۍ برخې ته یې ایښی وایي، چې په هغه کې کړند او وړیوري اړوند ټوکونه راځي او کړ یې ده ده لګوي او استنادیرې کوي.

## ۲-۶۷: ایښوونی - خبر یا مسند object predicate

دعونډلي د ویبی برخې ته وایي چې کړ کړول او نور ور پورې اړوند توکونه اخلي، ځکه چې په دې برخه کې کړ راځي او کړ دعونډلي بنسټ جوړوي. نو په ښتوالي یې نه یوازې ایښوونی بلکه ایښی هم ارزښت نه شي پیدا کولای، که نه ښیمګړي اوښندکي ورته وېل کېږي.

## وییکي - ادات: particles

۲-۶۸: یوه غوره برخه وییکي دارو، یا اړوند توکي یا ازادو ګروپونو (۲-۲۰) ده په دې ورپسې ده ول:

## ایکوییکي (ادات ربط): conjunctions

۲-۶۹: هغه وییکي دي چې دخومره والي یا څرنګوالي یا ورته والي له مخې سره آرې او څرمه غونډلي (جملې) نښلوي او په دې توګه دوه-دوه سوغاره کېږي، لکه: (څومره) دیګ-(هومره) تیږه، که څه هم-بیاهم.

## ورتني وییکي (ادات تشبیهي):

۲-۷۰: هغه وییکي دي چې د دوو یا زیاتو څیزونو یا پدیدو ورتوالی او مشابهت ښیي، لکه: غوندې، په څېر، په دود، لکه، په رنګ، په دول....

## تروییکي (ادات عطف):

۲-۷۱: چې دوه توکونه (ویې-غونډلي) سره ملګري کوي، لکه: او-و-که، یا....

## تولوییکي (ادات اضافت):

۲-۷۲

چې څیزونه یا پدیدې یو له بله سره اړوند کوي. پښتو په جولیز دول یو تولوییکي (د) لري، لکه: دکندهار انار...

## ۲-۷۳: سربل - پیشینه - preposition:

هغه ویئیکی[۲-۶۸] ته‌لي چي تر یوه نوم د مخه راځي او په یوه غونډ یا غونډ له کي د هغه نوم، ټیرا او دریځ ښیي لکه: (په) په (پرکورکي)، (له) په (له‌کوره)، (له‌کوره سره)، (تر) په (ترکوره پورې) کي او داسي نور.

## ۲-۷۴: اوستربل - پسینه - Postposition:

هغه ویئیکی دی چي ترنامه وروسته راځي او له سربل سره د هغه نوم ټیرتیا ګي. لکه: (کي)، په (کورکي)، (سره) په (له زلمي سره)، (پورې) په (په تاپورې) کي او داسي نور.

## ۲-۷۵: تاړی - وند - affix:

هغه تړلي ګړدی چي شتوالی، چار او مانا یې له یوه یا د ټېرو ازادو ګړونو یا ویپونو سره په یوځایوالي او پیوستون څرګند یدای شي. د یوه تاړي په نښلونې سره یو ازاد ګړ یا وی یوه نوي جوله او مانا پيدا کوي او یو بېلنګ (مشتق منځ ته راوړي) او د ازاد ګړ یا بلګړ ولډا او یا ویپونو یو نه جلا کیدونکی توک ګڼل کیږي او په ویي رغاونه کي ستره برخه لري. د ټې دوله دي.

## ۲-۷۶: روستاړی - پسوند - suffix:

هغه تاړی دی چي د اړوند ګړ یا ویي په پای پورې نښلي او د نوروتاړو غونډي یو نوی بېلنګ (مشتق) منځ ته راوړي، داسي چي جوله او مانا یې له هغه بنسټيز ګړ یا ویي سره توپير لري. لکه: (نی) چي له (کور) څخه (کورنی) جوړ وي.

## ۲-۷۷: مختاړی - پیشوند - prefix:

هغه تاړی دی چي د اړوند ګړ یا ویي په سر پورې نښلي او د نورو

تاړ وغوندې له نوي جوللې او مانا سره يو نوی بېلګ (مشتق) رامنځ ته
کوي، لکه (ور-) په (ورکول)، (دي) په (پرېوتل)، (په) په (پسل) او
(بې) په (بېپسل) کې او داسې نور.

## ۲-۷۸: منځتاړی- ميانوند- infix:

هغه تاړی دی چې د يوه کړ يا ويې په منځ کې ځای نيسي- له نوي جوللې
او مانا سره يو نوی بېلګ (مشتق) منځ ته راوړي او که دوه جلا ويېونه
سره ونښلوي يو نوی ترنګ (ترکيب) جوړوي. په پښتو کې يوازې دا
ورسته ډول منځتاړي شته، لکه: (الف) په (بېلابېل)، (نا) په (زړه نازړه)
او (ما) په (شور ماشور) کې.

## ۲-۷۹: ژبپوهنه- زبانشناسي- linguistics:

هغه پوهنه ده چې ژبه او د هغې ځرنګوالی رغاونه (ساختمان) او راز-
راز ژبنۍ ځکالوې (مسالې) تر څېړنې او کتنې لاندې نيسي. څه چې په-
ژبپوهنه کې څېړل کېږي هغه به يوه ژبه وي او يا خوږ ژبې، خوله ژبې او
ژبنيو ځکالو و نور څه د ژبپوهنې ويينه (موضوع) نشي کېدای.

د ژبپوهنې نړيوال نوموونه (اصطلاح) لېنګويسټيکه بلل شويده چې
انګليسي بڼه يې لېنګويسټيکس (linguistics) ده. بنسټ يې لېنګوه-
(lingua) لاتين دی چې مانا يې ژبه (لسان) ده او روستاړی
يې استيکه (astica) ورسره له يوناني څخه يو ځای شوی دی چې دا
د (پوهنې) مانا را اخلي. پخوا يې ژبپوهنې ته فلالوژي (philology)

## ۲-۸۰ : ژبه او ژبپوهنه = زبان و زبانشناسي :

به او ژبپوهنه سره دوه بیلابیل واقعیتونه دي، داسې باید ونه هیڅول
ني چې ژبپوهنه گوندې د ژبې د زده کړې ما نا لري. ژبپوهنه د دې،
یاره لوستل کېږي چې د ژبې په باب یوه لټولیزه پوهه تر لاسه شي او
ه الواکي (تیوریکي) ډول پرې د یوې بشري پوهنې په توگه علمي تنده
اته شي. د ژبې پېدا ایښت، ځرنگوالی، جوړښت، دنده، او بښتنه
پرختیا، بدلختیا، ډېر ښت، د بیلابیلو ژبو کورنۍ، څانگې او ښرانگې
گردودونه) او نور اړیکي سره د ژبې د زده کړې او داسې نور نظري او
علمي مسایل یې وڅېړل شي. په بله وینا د ژبې زده کړه او د ژبپوهنې
زده کړه سره توپیر لري. په دې توگه باید د ژبې زده کړه او د ژبپوهنې
زده کړه سره گډه نشي. داچې وایو یلانی ژبپوهاند دی، دا
ما نا نه لري چې هر و مرو به په ډېرو ژبو پوهېږي او پرې غږېږي
له ځوك په ډېرو ژبو پوهېږي یې له دې چې ژبپوهنې لوستې
وي یا پرې په پوهنیز ډول پوه شي، ډېر ژبی (پولي لینگوال) یا دوه
ژبی (بیلینگوال) یې بللای شو نه ژبپوهاند. په دري ژبې کې لومړي
ته (زبانداني)، او دویم ته (زبانشناس) وایي او په پښتو ورته ژبپوهاند
او ژبپېژاند هم ویلای شو.

## ۲-۸۱ : د ژبپوهنې څانگې = شعبه های زبانشناسي :

ژبپوهنه د ژبپوهاند او ژبڅېړونکي د موخې (هدف)، او کار د اسانتیا لپاره
په بیلابیلو څانگو ویشل کېږي. لومړی یې د دوو ستر و الواکي (نظري) او کارنې (تطبیقي) ویشنه
موخې.

۲-۸۲: الواکي ژبپوهنه- زبانشناسي نظري:
د اخانګه په ټولیز ډول ژبني آړونه (پرنسیپونه) عمومیات څېړي
چې د نړۍ په هره ژبه کارول کېدای شي.
۲-۸۳: کاروني ژبپوهنه- زبانشناسي تطبیقي:
هماغه ټولګونه او معلومات چې الواکي ژبپوهنې رامنځ ته کړي وي،
په ژبښوونه، پښوونه (ګرامر) او نورو ژبنیو چاروکې پرکار اچول
کېږي او ترې ګټه اخیستل کېږي.
۲-۸۴: د الواکي ژبپوهنې څانګې شعبه های زبانشناسي نظري تیوریکي:
الواکي ژبپوهنه دا وروستۍ څانګې لري:
۲-۸۵: سربانډې ژبپوهنه- علم ماوراء اللسان:
د ژبپوهنې هغه ډول دی چې په هغه کې له ژبې سره د ناژبني واقعیت
د سبکارندو (مظاهرو) اړیکې څېړل کېږي. لکه د غږ یدونکي او
اوریدونکي له اند او اکر (تفکر او وضع) سره، له فرهنګ سره، له ټولنې
سره د عیني واقعیت په ټوګه څېړل کېږي. د بېلا بېلو ژبو غږ یدونکي انسانان
د واقعیت په بېلابېلو منزیوکې ژوند کوي (اولریښ ۷۲).
په لنډ ډول سربانډې ژبپوهنه د ژبې د ننې رغاونې او خرنګوالي او نورو
ژبنیو مسألو پرځای د هغې په شاوخوا کې څېړنې کوي.
۲-۸۶: همهالي ژبپوهنه= زبانشناسي همزماني:
چې څینې خلک یې سپړیږ. یا تشریحي (توصیفي) ژبپوهنه هم بولي، د یوې
ژبې رغاونه او خرنګوالي په یوه جوت ټاکلي مهال پېر (زماني دوره) کې تر
کتنې لاندې نیسي.

۸۷: ناهممهاله ژبپوهنه - زبانشناسي درزماني diachronic ling:
يوه ژبه په بېلابېلو او بېلتونکو مهالپېرونو (دورو) کې څېړي، ځينې يې تاريخي ژبپوهنه هم بولي.

۸۸: پرتلينه ژبپوهنه - زبانشناسي قياسي - comparative ling:
دلته د بېلابېلو ژبو او خپلوانو ژبو ورته والى او ناورته والى څېړل کېږي.

۸۹: نښنپوهه - علم العلايم - نشانشناسي - Semiology:
د ژبپوهنې په دغه څانګه کې د نښو تقلين عوامل، ال او بيا ژبنۍ نښې - (سمبولونه) تر څېړنې لاندې نيول کېږي.

۹۰: ماناپوهه - معناشناسي Semantics:
په دغه څانګه کې د ښودونکو او ښوولو (يا نومونو او نومولو) (دال او مدلول) ترمنځ اړيکې يا په بله وينا ژبني سمبولونه (ويونه، څرګندونې او کړنې) او د هغو مانيز ونجونه څېړل کېږي.

۹۱: ځېلپوهه - گونه‌شناسي Typology:
په ژبپوهنه کې دغه څانګه د نړۍ د بېلابېلو ژبو څانګړې رغاوني تر کتنې لاندې نيسي او د همدغه رغاونو ځېلونو (تيپونو) له مخې ژبې سره ډلبندي کوي.

۹۲ پېښتپوهه - شجرة النسب - genealogy:
په ژبپوهنه کې دغه څانګه ژبې د خپلوۍ له مخې څېړي، په بله وينا له ژبنيو کورنيو او خپلوانو ژبو سره کار لري. په دې توګه د نړۍ ژبې سره د کورنۍ او خپلوۍ اړيکو له مخې ډلبندي کوي، لکه: هندو اروپايي ژبنۍ کورنۍ، حامي او سامي ژبنۍ کورنۍ، دراوېډي ژبنۍ کورنۍ، التايي (ترکو مغولي) ژبنۍ کورنۍ او داسې نورې.

٢-٩٣: ژبادپوهنه - philology:

دغه نوم ښه (ترم) د مخه د ژبپوهنې په مانا کارول کېده، خو اوس د ژبپوهنې هغې تاریخي برخې ته وایي چې زاړه ادبي متنونه تر ژبنیزې څېړنې لاندې نیسي. په بله وینا په ژبادپوهنه کې هم زاړه ادبي اثار څېړل کېږي او هم زاړه ژبني اثار لکه: اوستایي، ویدي، پارسي، سوغدي، کوشاني او داسې نور (داوړ ګوټه ۲۱۶).

٢-٩٤: ژبوګړپوهنه:

دلته د ژبپوهنې او ګړپوهنې ترمنځ اړیکي او یو پر بل اغېز څېړل کېږي (ماریو پای ۶۸).

٢-٩٥: ژبټولنپوهنه - جامعه شناسي زباني:

دا څانګه د ژبې ټولنیز اړونه (شرایط) ژبزده کړه او ژبنۍ مخابره (افهام او تفهیم) راخلي، دغه راز له ژبني چاپېریال سره د یو ګړي (فرد) اړوندي (تعلق) او همداسې نورې خبرې څېړي (اولریش ۱۰۶).

٢-٩٦: ژبفلسفه یا ژبنۍ فلسفه - فلسفهٔ زباني:

هغه پوهه ده چې د ژبې ماهیت اَره (منشأ)، روحي، عقلي او هغه تاریخي خواوې چې پرې اغېز ښندي، د ژبې او اند او ژبې او ژوند (هستۍ) ترمنځ اړیکي څېړي (اولریش ۱۰۹).

٢-٩٧: ژبساپوهنه - روانشناسي زباني:

دغه څانګه د ژبزده کړې، او ژبکاروونې او داسې نورو مسألو د روحي پېښو له مخې څېړي.

٢-٩٨: ځمکژبپوهنه - زبانشناسي جغرافیایي:

دغه څانګه د ژبې پراختیا او د ژبنیو پدیدو ویشنه تر کتنې لاندې راوړي (ماریو پای ۲۲۴).

## ۲-۹۹: گړدود پوهنه - گوښشناسي (لهجه شناسي):

د ژبپوهنې د غه برخه د یوې ژبې (۱-۱) راز - راز سیمه ییزې، ټبرییزې، ټولنیزې او داسې نورې بڼې او گړدودونه څېړي.

## ۲-۱۰۰: پښویه - گرامر یا دستور زبان:

لاتین بنسټې گراماتیکه چې ژبپوهنه مانا لري په یوناني کې د یوروېي گراماتیکې په بڼه د یوې ژبې د توکونو (توروـ لیک ـ غونډلې) د پوهې په مانا کارول شوی دی (واریک).

په ټولنیزه توگه پښویه د تطبیقي او یا سپړیزې (تشریحي) ژبپوهنې یوه غوره څانگه ده چې د یوې ټاکلې ژبې رغاونه او قواعد او یا په لنډه توگه د یوې ژبې رغاوني سیستم ترکتنې لاندې نیسي. څنگه چې هره ژبه ځانته جلا د رغاوني غونډال (سیستم) او ویې پانگه لري، نو د یوې ژبې د پښویې په لیکنه او براېرونه کې د هماغه ژبې خپله رغاونه، قواعد او ویې پانگه په پام کې نیول کېږي. د یوې ژبې پښویه د بلې ژبې لپاره نه کاراېږي یا د یوې ژبې پښویه د بلې ژبې د پښویې په بنسټ کښل علمي نه بلل کېږي.

یوه پښویه په دوه ډوله په سوونځیو او زده کړځیو (کورس) کې د اړونده ژبې یاد هغې د معیاري لیکنۍ بڼې د زده کړې د اسانتیا لپاره لوستل کېږي. او د هغې په مرسته پردۍ ژبې یا ټاکلې ژبې په اسانه زده کولای شي او خپله د مورنۍ ژبې والا د هغې په مرسته د خپل ځانگړې اړوند گړدود (لهجې) پر ځای عمومي معیاري لیکنۍ ژبه زده کوي او کاروي. پښویه یا گرامر لکه د یوه دیموکراتیک ټولنیز قانون غونډې د خلکو له ژبې راایستل کېږي او بېرته پر هغو یو برابر او بې توپیره تطبیقېږي او یا څوک د تحلیل نه وي.

«زما ګرد ود دغه دی او لکه څنګه چې غزني م همدغه زما ګرامر دی او د عمومي ګرامر قاعدو ته غاړه ایښودونې ته اړ نه یم!».

## ۲-۱۰۱: د پښتو ي ډولونه:

پښتو یې لکه د عمومي ژبپوهنې غوندې د څېړونکو د موخې (هدف)، له مخې په ټولیزو (معیاري)، ګرد ودي، تشریحي، تاریخي، پرتلیز، سبوو نیزو (تعلیمي)، رغاو نیزیا (*structural*)، ګزارزشي (*transform.*) او-داسې نورو ډولو پېشنه موې.

## ۲-۱۰۲: د پښتو ي ځانګې:

د پښتو ي ځانګې هم د ژبپوهنې د نورو ځانګو له مخې پېشنه موې چې ژبه لکه څنګه رغېدلې ده، یا په یله ویناد ژبې رغنده توکونه (متشکله عناصر) کوم دي، ژبه د عبارتونو او جملو له ترتیب او ترکیب څخه رغېدلې او جملې د ویيو، کلمو او نورو رغاکنده توکونو، او رغاکنده توکونه د انساني غږونو له اوړان او تړون (ترتیب او ترکیب) څخه جوړېږي او دغه اوړونونه او تړونونه په هره ژبه کې ځانته بېلابېل دودونه، قاعدې او غوندال (نظامونه) لري، په دې توګه که وغواړو د ژبې رغاونه (ساختمان) وڅېړو، په دغو ډول ځانګو یې وېشو:

۱- غږ پوهنه ( ۲ — ۲ — ۱۰۳ ) ۲- ګړ پوهنه ( ۲ - ۱ ) ۳- غوندله پوهنه ( ۲ - ۱ )

## ۲-۱۳ غږپوهه (سپينپوهه) - آواشناسي (غږشناسي) يا phonetics:

دلته هر اړخيز ژبني غږونه په تفصيل د ولو څېړل کېږي که دغه غږونه ځنځيري وي که نا ځنځيري (۲-۴، ۵) او يا ژبني (فونيمکي) ارزښت ولري او که نه. دا مانا چې هر وړ ويونکي داسې غږيز پيوون (واحد) اواز نشي کېداى چې د يو ماينز توك په جوړونه کې کومه اغېزمنه برخه ولرلاى شي بلکې د يو بيوازيني غږ (اواز) توکونه يا بلغږونه (۳-۱۱) ګڼل کېږي.

نن سبا غږپوهه، اوا شناسي، فونولوژي او فونيټکس په يوه مانا کارول کېږي او يا د هغه په دننه کې د فونيټکس او فونيمکس توپير کوي. دا دى تر داوره وسته سرليك لاندې په تردامنځ يوره رڼا واچول شي.

## ۲-۱۴ د غږپوهې او اوازپوهې اړيکې:

د ژبې غږونه کولاى شو له دوو بېلابېلو اړخونو څخه ترڅېړنې او سپړنې لاندې ونيسو زموږ موخه (هدف) دا دى چې وګورو په يوه ژبه کې غږونه څه ډول رازېږي، د هغو په منځ ته راتګ کې کوم غږيز غړي په کار اچول کېږي او فزيکي لوښه (خاصه) يې څه راز ده، کوم فزيکي عوامل د دې سبب کېږي چې د يوې ژبې غږ د بلې ژبې له غږ سره توپير ولري، غږونه څنګه اوړي بدل کېږي، يا يې په يو ځاى کېدلو کې څه ډول بدلونونه راځي او يا هغه څنګه راځي او داسې نور، دغه راڅېړنو ته غږپوهه وايي. نو په غږپوهه کې زموږ موخه د غږ

د ژبې د اوفزیکي لوبښې پېژندنه ده، یا په بله وینا د هغه موندنه ده.

له بله پلوه سنایې د غږونو له څېړنو څخه مو موخه دا وي چې وپوهېږو په یوه ځانګړې ژبه کې هر یو غږ څه چار (نقش) پر غاړه لري. کوم یو غږ په یوه ځانګړې غږېزغونه کې د بل یو غږ پر ځای وکارول شي او یا د یوه ژبني بدلون سبب شي (د ساري په توګه مانا و نه بدلوي) او کوم یو غږ چې د بل غږ پر ځای وکارول شي، کوم بدلون نه پېښوي. او یوازې په وینګ (تلفظ) کې ګډوډي راولي. غږونه د کومو ژبنیو دودونو (قواعدو) له مخې سره ترنګ مومي او لا زیات ستر جوړښتونه لکه څپې، ویې یا عبارت منځ ته راوړي. خو ا زیات ترنګونه په یوه ژبه کې کېدونکي وي او څه راز ترنګونه کېدونکي نه لري او د ودونه یې څه دي. د غه راز پلټنو ته اواز پوهنه (فونیم پوهنه) وایي.

په دې توګه اواز پوهنه د ژبې د غږیز نظام څېړنه ده او د غږونو ژبېز د فزیکي لوبښې او منځ ته راوړنې له څرنګوالي سره کار نه لري.

له پورتنیو خبرو څخه دا پایله (نتیجه) اخیستلای شو چې د غږ پوهنې موضوع (غږ) یا په بله وینا یوه فزیکي او عادي پدیده ده، خو د اواز پوهنې موضوع غږیزغونیال (نظام) او په هغه کې د غږونو چار (نقش) یا په بله مانا یوه ذهني او مجرده پدیده ده. د ژبې غږیزغونیال د هغې ژبې د بېلابېلو غونډالونو یوه برخه جوړوي، نو اواز پوهنه د ژبپوهنې یوه برخه ده. د غږ پوهنې څېړنه د اواز پوهنې په برخه کې د څېړنې یوه سرېزه ده، په دې مانا چې تر څو چې لومړی په غږ پوهنه کې د ژبې د غږونو پېژندنه تر سره نه کړو، نشو کولای په اواز پوهنه کې د یوه داسې نظام

چې د غږونو ترمنځ شته دي او هغه د ودونو (قاعدې) چې په هغه
نظام والمنی لري، تر څېړنې لاندې ونیسو.

غږپوهه دا وروسته درې څانګې را اخلي:

## ٢-١٠٥: توليدي غږپوهه - articulatory phonetics:

چې د ژبې د سپیناوو یا غږونو څېړنه او سپړنه (تشریح) د غږیزو غړو له مخې او د هغو د توليدي نقش له مخې تر سره کېږي.

## ٢-١٠٦: اکوستیکه (آزمایښتي یا لابراتواري) غږپوهه یا acoustic phonetics

د صوت فزیک په مرسته هغه غږونه چې د غږیزو غړو په وسیله جوړېږي او په ژبه کې کارول کېږي، د فزیکي څانګړتیا له پلوه څنګه توصیفېږي او څنګه ډلبندي کېږي.

## ٢-١٠٧: اورېزه غږپوهه - auditory phonetics:

د ژبې غږونه (سپیناونه)، چې څنګه د اورېدونکي له خوا اورېدل کېږي، مطالعه کوي. لکه څنګه چې لیدل کېږي، په دې لړ کې توليدي غږپوهې تر دوو نورو زیات پرمختګ کړی او ډېره کارول کېږي او - اکوستیک (ازمایښتي) غږپوهه لابراتواري الو او سامان ته اړتیا لري.

## ٢-١٠٨: ویې پوهنه - علم اللغت - واژه شناسي:

د یوې ژبې د ټولې ژبنۍ زېرمې (ویې پانګې)، مانا پوهېزې (سیمانتیکي) یا - ګړپوهېزې (مورفولوژیکي) څېړنې ته وایي. په بله وینا ویې پوهنه د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې د یوې ژبې یا ژبو د ویې پانګې (vokabulary) بېلابېل (جوړیز - مانیز - منشایي) اړخونه څېړي، ځینې پوهان د غه پوهنه

د ژبپوهنې یوه څانګه خپلواکه څانګه بولي او ځینې یې بیا ترغږپوهې، ګړپوهې او غونډله پوهې وروسته د ژبنوي څلورمه برخه ګڼي.

۲-۱۰۹: آرپوهه یا ریشه شناسي:

د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې په یوه ژبه کې د ژبنیو توکونو. آره او تېر مهال څېړي او د هغو لومړنی لرغونی بنسټ جوړوي. (ماریو. پای).

د اولریبنل لومړي له یونانې (ریښتیا او لرغونتیا) یوه پوهه ده چې د ژبنیو تښوله آرې (منشأ) او د ویې رغاوېز جوړښت له مخې د هغوا روندې څېړي، په بله وینا له اتمولوژیکي خپلوکه، ولیو (ریښو) او بنسټیزې مانا څخه خبرې کیږي.

همدارنګه له تاریخي پلوه د هغو د غږیز و بدلونونو. غږیزو دودونو او مانیز و بدلونونو څخه. لکه پښتو سرتمغږونه (غ - ل - و) په لرغونو (ګ - د - ب) پسې ځي.

په اتمولوژیکي ډول ز ړه - دل، لر ی - دور - تیل (تیلګراف) یا پلار - پدر - فادر - فاتر - پاتر... سره خپلوان بلل کیږي.

۲-۱۱۰: مورفو - فونولوژیکي اوښتنې:

مورفو - فونولوژیکي اوښتنې دې ته وایي چې یو اواز په یوه څپه یا ویې کې له مخکې یا وروسته اواز سره همرنګې شي.

۲-۱۱۱: پرمختګي همرنګي - Progressive assimition.

چې په یوه څپه، ګړ یا ویې کې یو اواز له مخنی اواز سره همرنګي شي، لکه بخښل او اخښل کې چې په ځینو ګړدودونو کې په بخښل او اخښل او بیا وروسته په بخل او اخل اوښتي دي.

## ۲-۱۱۲: پرشاتګې همرنګي: regressive assimilation :-

هغه ده چې په یوه څپه، ګړ یا وېي کې یو اواز تر وروستي اواز اغیزلاندې راشي او د هماغه په رنګ شي لکه په یومبه او تمبه یا پور وییو لکه اکبر (اکبر) کې او داسې نور.

## ۲-۱۱۳: ګاونډه همرنګي:

چې اواز په خپل چاپېریال کې له خپل مخني یا وروستي اواز سره همرنګي وموي له (مخني) سره لکه (بخخل) پرمختګې ګاونډه همرنګي جوړوي او له وروستي سره لکه (یومبه) پرشاتګې ګاونډه همرنګي منځ-
ته راوړي.

## ۲-۱۱۴: ناګاونډه همرنګي:

چې په یو ګړ، وېي یا څپه کې یو اواز د یوه داسې (مخني یا وروستي) اواز تر اغیز لاندې راشي او د هغو همرنګي شي چې په ګاونډ کې یې نه وي لکه: (ن) له (ل) سره په نونس (نولس) کې. په دغه بېلګه کې چې وروستي اواز له مخني اواز څخه اغیز من شوی پرمختګې ناګاونډه همرنګي بلل کېږي. د پرشاتګې ناګاونډې همرنګۍ بېلګه یې لکه په څنځیر کې چې له اره زنځیر دی.

## ۲-۱۱۵: ناهمرنګي - ناهمګوني - disassimilation :

دمورفو-فونولوژيکي او سنتني هغه ډول دی چې په یوه ژبنه-
چاپېریال (ګړ - وېي - څپه) کې همرنګ اوازونه سره ناهمرنګي شي لکه:
په لمونځ کې (ل) او (ن). البته ناهمرنګي هم پرمختګې او پرشاتګې او له دې-
سره ګاونډې او ناګاونډې کېدای شي.

۲-۱۱۶: اوړښت - قلب - Metathesis:

هغه غږيز بدلون ته وايي چې د يوه ګړوېي يا څپې د اوازونو په اړدون (ترتيب) کې پېښېږي، لکه په څمکه - ځمکه، وږخ - روځ، ږغ - غږ کې.

۲-۱۱۷: غورځېدن - حذف - omition:

چې له يوه ګړوېي يا څپې يو اواز وغورځي او کم شي، لکه ږږه (ږړه)، زه (زړه) او چرخول (چرڅ غول) کې.

۲-۱۱۸: زياتېدن - افزايش - addition:

هغه پېښې ته وايي چې په يوه ژبني چاپېريال کې، ويي يا څپې کې يو اواز هسې د يوه خوږه اهنګ يا (euphony) په توګه زيات شي، بې له دې چې کوم مورفونولوژيکي فنکشن پېښ کړي، لکه د (ن) زياتېدل تر (ګ) د مخه په منګر (مګر)، او مونږ (موږ). يا د (د) زياتېدل په (ن) پسې، لکه په چمند (چمن) او ارماند (ارمان) کې.

۲-۱۱۹: ساندهي يا غونډ له غږونج (sandhi):

چې له آريايي سانسکريت يوه ږې اخلي، خو کيدای شي په پښتو کې يې هم کوم خراك ولګي. د ساندهي مانا پيوستون دی او په دې اند چې په يوه غونډله کې د څنګ و پېيو نو د پای غږ و نه يو له بله اغېزمن شي، په دې توګه يې مونږ په (غونډ له غږونج) اړ باړو.

۲-۱۲۰: هميات: يو بل اغږونج او هغه هم خپلواکو غږ ته چې په پښتو لويونو کې ډېر ژر پېښېږي. داسې چې په يوه وييکې د څنه يا دوه له پسې ويو پای ته (ز يا ترږ همرنګه) خپلواکه يو په بل کې ادغام شي او هغه غږ يو او بل د خپلواک غږ ته اوړي، لکه اړخ په اړخ چې ځينې پښتانه يې (اړخ يا رخ) وايي.

# ۳ - څپرکی:

## ۳-۱: وینایېز یا ګړهاري غړي - اندامهای ګفتار organs of speech

لکه څنګه چې ورته د مخه نغوته وشوه ژبني غږونه د زېږېدنګ او -
اورېدنګ له مخې څېړلای شو. په تولیدي غږ پوهه (۲-۱،۵) کې ژبني غږونه
په تولیز ډول د ګړهاري غړو له پلوه پېژندونه (تعریف) سوي . داسې چې
هر یو غږ د ګړهار یا وینا د بهنځي (مجرا) په کوم ځای کې زېږي او د زېږېدو -
وخت یې ګړهاري بهنځی څه آکر (حالت) غوره کوي . په دې توګه د هر
یو غږ په پېژندون کې ګړهاري غړو ته لږ تر لږه دوه ځلې نغوته کېږي.
یو ځلې د غږ زېږنځي او بل ځلي د غږ زېږ په بهیر کې د غړو د څرنګوالي
له پلوه . د ساري په ډول د (ب) غږ د پېژندون، څرنګوالي او داچې،
زېږنده غړي یې دواړه شونډې دي او زېږنځی یې د دواړو شونډو د
پیوستون ټاټ دی، نو ورته غبرګشونډیز غږ یا په بله وینا اواز (۲-٦)
وایو. له بلې خوا څنګه چې د (ب) له زېږ سره د دواړو شونډو تر منځ بیا هوا
بهنځی بندوي، نو د غه آکر (حالت) ته تمبت (انسداد) وایي او په دې،
توګه د (ب) په پېژندون کې وایو (ب) یو تم غبرګشونډیز غږ یا اواز دی.

د دغې څرګندونې پر بنسټ غړونه د بېلابېلو غړو په نامه نومول کېږي.
(شونډېز - غبرګشونډېز - غاښيز ...) او له دې سره غړي هم په بېلابېلو
نومونو ویشل شوي.

دلته د مخنۍ وینا (۳-۱) بیا یادول په کار دي چې غږیز ژبیز یا
ګړهاري غړي د امانانه لري چې ګوندې هغه له آره په ښځیز (ملبي،
ډول د همدې پاړې (ګړهار) لپاره پیدا شوي دي، بلکې د سارګې
په توګه ګوروچې، شونډې، غاښونه، خوله، ژبه
او داسې نور رغنانه جلا - جلا فزیولوژیکې پاړې لري او
غږیزې تشه یو څرمه پاړه ګڼل کېږي چې انسان یې
په ګړاو او تمرین سره ترسره کوي.
غږیز یا ګړهاري غړي د غږیزې په برخه کې د بېلا-بېلو
وندو او نقشونو درلودنې له بلوه په دغو وروستو درو ډلو
وېشل کېږي.

## ۳-۲: ساییز (تنفسي) غړي - اندامانښتي Respiratory organs:

په دې ډله کې سږي، مری، کړنګي (د سږو نلونه)
راځي. د ساایستنې میکانیزم د دې سبب کېږي چې هوا سږو
ته له بهره ورننوځي او بیا ترې بېرته رابهرشي. د دغه
دواړه بهنګه په غږزېږونې پر کار لېږي. ساییز
غړي د غږ زېږ په هڅه د خوځند ځواک
د زېږ لپاره داسې وړ میکانیزم-

رانغ ته کوي چې د هغه په وسیله نور ګرهاري غړي پر خوځېدو راولي. (۱۰-ش)




ش (۱) سایېز غړي

## ۲-۳: غږ نوالي رغنده غړي- اندامونه یا د غږ والي ساز phonatory organs

د غږ او د حنجرې (چنغړک) په نامه په یوه کره پند یزه تشه کې ځای نیولی دی او د مری له پاسه پورته برخه کې پراته دي. په چنغړک کې دوه شونډیزي وله او پردې- بزمیدونکي پردې په پراته (نري) ډول ځای لري چې غږ یز تارونه بلل کیږي (اخته هم تار ډوله نه دي). د غږ یزو تارونو ترمنځ تشه حنجره یا (glottis) لومبړي. د غږ یزو تارو نو فزیولوژیکي پازه د وازیدني او بندیدنې په وسیله د ساه ایستنې او تېرونې او پرانستنې تنظیم دی. بل دا چې د دې نوخښتونو د جګوالي په وخت کې سر. او نه د هوا د تاڅ او رانګ په مخنیوې سره د ګوګا د کنبته و لیدنې او ماتیدنې مخه نیسي (۲-ش).

د زېږیزي (تولیدي) غږ پوهې له مخې د غږ نوالو رغنده غړو-ستر چارونه (نقشونه) په وروسته ډول دي:

## ۲-۴: غږ نوالي زېږ- تولید واک- articulation of voice:

د غږ نوالي د زېږ لپاره سره غږ تارونه نژدې کیږي، تر هغې چې د وتونکې ساه هوا په بهیر کې یو څه آړ (مانع) رامنځ ته شي. د وتونکې ساه هوا تېرېدنه د دې سبب کیږي، غږ تارونه چې سره یو ترسلسې ورغلي دي په رېږ داشي (۳-ش). له همدې رېږ دا څخه غږ نوالی جوړیږي.

واک (غږ نوالی) له پرله پسې لو (منظمو) څپو سره یو غږ دی. د څپو پرله

پیلوالی دغه غږ ته سندرېزه (موسیقاري)، لوښه ورکوي. دغږ- همدغه ځانګړتیا ده چې سندرغاړي ترې د سندرې په کښنه کې- ګټه اخلي.

دغږ د زېږوېمی، رساوالي او نارسا والي ګچه ترزیاتي اندازې د- ودتوګکي ساهوا په فشار او دغږ تاروښو د زېږ دا په پرله پسېوالي، لوړ- والي او پراخوالي پورې سیده اړه لري، د غږنوالي د زېږ د پروخت دغږ تاروښو اکر (حالت) ته دغږ نوالي جوړوني اکر والي. هغه غږونه چې د زېږ پروخت یې غږ تارونه دغږ نوالي دجوړونې په حالت کې دي غږن بلل کېږي لکه: د «ز» غږ او هغه غږونه چې د زېږ پروخت یې غږ تارونه دغږ نوالي دجوړوني په حالت کې نه دي، ناغږن ګڼل کېږي لکه د «س» غږ.

## ۳-۵ دناغږ نوالي حالت- حالت بېواکي :breath position-

داهغه حالت دی چې غږ تارونه د طبیعي کښني پروخت ځانته غوره کوي. په دغه اکر کې غږ تارونه یوله بله جلا د رېږي، چنغړک بیرته (۲ ش) او د ودتوګکي ساهوا بهنګه یې له خنډه له کومې (چاکناک) ښخه تېرېږي او پرچنغړک باندې پرتو تشو ته رسېږي. په پای کې په چنغړک کې هېڅ راز کوم غږ نه زېږي. دڅېړنیو غږ ودتوديوې ځانګړتیا په توګه دغږ نوالي غوندې له ناغږ نوالي ښخه هم ګټه اخیستل کېږي. اوله دې کبله ورته په غږ پوهنه کې پاملرنه ډېره اړینه ده.

### ۳-۶: دګونګوسي زېږ - توليدنجوا - whisper position:

دګونګوسي زېږ لپاره دغږ تارونه پرخپله سره ورځي او يوه برخه يې سره يوله بله جلا پاتېږي. داسې چې کومې (چاکناى) نيمه ترلې او نيمه پرانيستې وي (۴-ش). په دې توګه دساکښتي بهنځ (مجرا) تنګېږي او د وتونکي ساهوا بهنګ له دغې تنګې نخه په تنګي دکومې دهماغې پرانتې برخې پر دېوال سولېږي او يو «هـ» ته ورته مشبلي غږ زېږي چې که دغږ پرځاى دو بنا لپار، په کار ولېږي، هغې وينا ته ګونګوسي وايي.

### ۳-۷: دتمواليکړ - حالت انسداد - Stop position:

په دې حالت کې غږ تارونه سره ورځي او کومې ديوځه شيبې لپاره بېنځې بنديږي (۵-ش).

د ګرهار بهنځ بېنځي ترل کېږي او دهوا بهنګ بېنځي بند بنت مومي - داسې چې د وتونکي ساهوا فشار د دغه بند بنت د چاودنې سبب کېږي او داسې غږ رازېږي چې ورته تم کومېز plosive glottal وايي چې دهمزه په نامه يې يادوو.

### ۳-۸: وييندغړي - اندامهاى ګويا - articulatory organs:

وييند غړي دستونې، خولې او پزې له درې ګونو تشو (جوفو) څخه رغېدلي دي چې پټول دچنغرك (حنجرې) دپاسه ځاى لري. (۶-ش) د دغو تشو چار د اړخيزو غړو او نورو زېږ دى چې له غږيزالي او يا آروغږ ونورسره ګډون مومي او دهغو نبنګهار او نوندوالي سبب کېږي. وييندغړي په غږ زېږ کې ځانته لور چارونه (نقشونه) لري چې په ورو ستېر ولخېړل کېږي؛

## ۳-۹: تېمېزې - خیشوم nasal cavity :

تېمېزې تر نورو دوو تشو لږ غځېدونکې دي، نو په دې توګه له دومره ونجونو (تغییرونو) سره نه مخامخېږي چې د راز رازغږونو د پیدا ایښت سبب شي. پوازې ژبه (ملاز)، چې درې وار و تشو په ګډ بریدکې ځای لري، له نېغ د ربډو سره د تمېز وخوله بندوي او له دې سره په غږ زېږ کې هېڅ برخه نه اخلي او د هغو غږونو په برخه کې چې د غلته زېږي، بې اغېزوي. کله چې ژبه لاندې راوړل شي، د تمېز و خوله پرانیستل کېږي او و تو نکې هوا یا غږ نوالي پر تمېزو و رننوځي، او پزېز (خیشومي) غږ رامنځ ته کېږي. په غږ آرلیک (ترانسکرپشن) کې د پزېز غږ نښه هغه کوچنی (~) دی چې پر اړوندتوري لیکل کېږي لکه (ã) پزېز غږ. ته غونه یې غږ هم ویل کېږي.

## ۳-۱۰: د ستوني یاکومې تشه - حزه، حلق یا حلقوم pharyngal case :

د ستوني یاکومې دېوالونه کېدای شي سره تینګ یا سست شي، په دې توګه کومې له تمېز و خخه زیات غځېدونکې دی، کله چې د ستوني دېوالونه سره ورغلي (منقبض) شوي وي، د ستوني یاکومې تشه (حلقوم) تنګېږي. له دې سره د ستوني د وتونکې سا تېرېدنه دېو د ول ځانګړي منبنې! بنګها درا پیدا کېږي و سبب کېږي چې کومېزه ځانګړتیا ورته ولېږي. غږونه منبلې کومېز غږ عربي (ع)، او ناغږون یې (ح)، ده. کومېز شوي غږونه لکه "ط او ظ" (۱-۶۳).

## ۳-۱۱: د خولې تشه - حزه دهان oral cavity :

دغه تشه به ویند وغړو کې تر ټولو زیاته غځېدونکې او له دې سره

تر ټولو زیاته کار نده او غوره ده. د خولې ښځېنه (انعطاف) د نرم تالو د خوځېدا، د شونډو او خوله ییز و دیوالونو د بېلابېلو بڼو، د لاندینۍ ژامې د ګرد خوځون او تر ټولو زیات د ژبې د هراړخیزو خوځېدو زېږنده ده. له هر ډول خوځېدا سره یو جلا غږ زېږي. د زیاترو غږونو په پیدا ایښت کې د ژبې ونډه د ومره اغېزمنه ده چې د نړۍ زیاترې ژبې یا په بله وینا بشري ګړنې ځواک ژبه بلل شوې ده.

داچې د راز راز غږونو په پیدا ایښت کې د خولې کارونه ډېره زیاته ده او د دې لپاره چې په خوله کې بېلابېل راپیدا کېدونې غږونه تعریف او تصنیف شي، نو په کار ده، خوله پر بېلابېلو ځایونو یا غږ زېږ ځیو وېشل شي، هغه هم د چت (تالو) له هغې چې نا خوځنده (ثابت) دی (۷-ش).

دغه راز ژبه د یو ډېر خوځنده غږ زېږي په توګه پر بېلابېلو برخو وېشنه مومې (۸-ش)، کې.

همدا رنګه شونډې هم کولای شي د راز راز بڼو په غوره کولو سره راز راز غږونه رامنځ ته کړي یا د هغو په پیدا ایښت کې برخه واخلي، لکه د د واړو شونډو ترمل کېدل، نیم ترمل کېدل یا بهې بېرته کېدل (ختشنایي ۵۱-۵۲).

## ۱-۱۲: زېږ ډولونه - شیوه‌های تولید manner of articulation:

هغه اکر (حالت)، چې وینده غږي یې د یوه غږ د زېږ پر وخت ځانته غوره کوي، د هغه غږ د زېږ ډول په نامه نومول کېږي. غوره زېږ ډولونه یې په لاندې ډول دي.



تمیزي (خیشوم)

د خولې تشه

دستوني تشه

ش، ٦: ویندغړي



۱- غیرگشونه‌یز
۲- شونډغابنیز
۳- اوورېز- تالوېز
۴- تالوېز- اوورېز
۵- مختالوېیز
۴- تالوېیز
۴- اوسترتالوېیز
۵- نرم تالوېیز
٦- ژبکی یېز
۷- ستونیز
۸- کومیز

ش، ۷: زیرځي



۱- سر
۲- تیغه
۳- مخه
۴- منځ
۵- شا

ش ۸: د ژبې ویش

۱- تم- انسدادی (انفجاري- بندښي) - plosive:
دغه راز ږغونه د هغه راوتنځ ته ويل کيږي، چې په يو ځای کې سره دوه غړي داسې سره يو له بل اړيکه (تماس) ومومي چې د ګرهار بهنځ يو څه شيبه وتړي او هوا تم شي لکه: د «پ» او «ب» په وينګ کې.
۲- پزيز- خيشومي (ش-٦) nasal:
دغه ږغونه د هغه محال منځ ته راځي چې د ژبې له ښکته کېدو سره د تيږو لاره پرته پاتې شي، په داسې توګه چې هوا له پالږ. ه ساهوا له تميزو څخه بهر شي.
۳- مښلي- سايښي (احتکاکي) fricative:
کله چې په يوه ږغځي کې دوه غړي سره داسې نژدې شي چې د ګرهار بهنځ د يو څه شيبې له پاره د ومره تنګ کړي چې له هغې تنګي څخه هوا د تيريدو پر- وخت په غږ و پوري ومښل شي يا وسولول شي او يو غږ راوتنځ ته کړي، مښلي- دول ترلاسه کيږي. مښلي دول کله کله د ژبې د بڼې له مخې پر ناوه يي (شپيلکي يا صفيري) او پاشلي دولو ويشل کيږي، لکه د«س» او «ز» د- پيل اينبت پر وخت. د پاشلي دول له پيل اينبت سره ژبه ناوه کيږي نه، بلکې هوا په ټول تنګي پورې سولېږي، لکه: د «خ» او «ش» د پيل اينبت سره.
۴- رغښتي- غلطان (لرزشي)- rolled (trill):
که د هوا بهنځ يو وينځ غړي د يو څه شيبې لپاره داسې پر ربړ دا راوړي چې له هغه ربړ دا څخه په غږ کې يو رغښت راوتنځ ته شي، رغښتي- دول لاس ته راځي. دغه دول د ژبې په ږغځي کې د ژبې له ربړ دا سره او په او ريز هغه کې د ژبې د سر له ربړ دا سره ترسره کيږي، لکه د پښتو (ر) يا- پر انتي (ر) د پيل اينبت پر وخت.

## ۵- یورېي - زنشي (نمک ضربي) - sub-standard:

دغه زېږ دول هغه مهال راپیدا کېږي چې د هوا بهنګ یو ویند غږی تش یوځل ورپوېي (وربږدوي) او د رغښتي غوندې یوازې په ژبه بیزا او وږن- زبږخې کې پېښېږي، لکه د «ر» وینګ په انګلیسي کې.

## ۶- اړخیز- کناري - Lateral:

کله چې د ژبې یوه برخه له یوه زبږځي سره داسې ولګي چې د ګرهار بهنځ- یوازې په منځ کې وتړي، مګر د خولې یوه خوا (وسکی) یا دوې خوا بېرته پرېږدي، اړخیز دول راپیدا کېږي. لکه د «ل» په پېدا ایښت کې.

## ۷- نامښلی- ناسوده - friction less:

که د وه غړي سره داسې نژدې شي چې دیوغږ، غږېزه لوښه بدله کړي، خو د تم مښلي د رېږدا (ربا) یا اړخیز توب سبب نشي، نامښلی زېږ دول رامنځ ته کېږي، لکه له «ی» او «و» سره.

زېږ دولونه د زېږځیو غوندې ترښتي (ترکیبي) لوښه لري. داسې چې که دیوغږ په پیدا ایښت کې د وه زېږ دولونه لکه تم او مښلي پېښ شي نو تم مښلی بلل کېږي، لکه: «چ» او «خ» همدا رنګه تم موښلي ناوږجي لکه: ځ - څ - ژ . . .

۳-۱۳ : پورویی (مستعار لغت) : هغه لغت چې له یوې ژبې څخه یوې ژبې ته ورننوځي، پور- ویونه هر وخت په آره جمله او مانا په پور وړونکې ژبه کې نه پاتې کیږي لکه سوله (صلح)، بزګر (بزرګر)، موټر (موټر) د کارېږي په مانا.

۳-۱۴ : پورغږ (مستعار صوت) : هغه غږ یا اواز (فونیم) ته وایي چې له آروینګ سره له یوې ژبې څخه بلې ته ورننوځي، لکه عربي (ق) په ځینو کې د (ک) او یا (ف)، د افغانستان په معیاري پښتو وینګ کې.

۳-۱۵: **زېږنځۍ یا زېږندځۍ**: د غږ د زېږېدو (۲-۲۱) هغو برخو ته ویل کېږي
چې د ژاولنتیا (ارتجاعیت) وړتیا یې په پرتلیز ډول د پټلرو او لوی اوږدو ناڅه
غلي او ناخوځنده وي، لکه: پاسنۍ شونډه، پاسني غاښونه، تالو (مخنی، منځنی، روستنی)
اوږه، ستونی او داسې نور. کوم بېلوالی غږونه چې له لومړیو زېږځیو
څخه اداشي، د همغه زېږنځي په نامه یادېږي، لکه: شونډیز بېوالی، غاښیز
بېوالی او داسې نور.

۳-۱۶: **غږ زېږېي غړي**: هغو ته ویل کېږي چې د ژاولنتیا وړتیا یې
زیاته وي او ډېر ناڅه خوځنده وي، لکه: لاندینۍ شونډه، ژبه او
د هغې څوکه، منځ او بېخ.

۳-۱۷: **ونوځۍ**: کله چې د بېوالیو غږونو د زېږښت غږ زېږي غړي
(۲-۳۱ - ۲۹)، په زېږنځي (۳-۱۵) پورې ونښلي یا ورته نژدې شي د نښتي یا
نژدې کېدني د غه ځای ته «ونوځۍ» وایي، په دې توګه پښتو
بېوالی دا لاندې ونوځۍ لري:
غبرګشونډیز: چې دواړه شونډې سره ونښلي او غږ اداشي:
غاښیز: چې د ژبې څوکه له اوړیو سره ونښلي او غږ وزېږوي؛
تالوییز: چې د ژبې بېلابېلې برخې د تالو له مخنی،
منځنی او یا وروستنی برخې سره ونښلي او بېوالی
رامنځ ته شي.

۳-۱۸: **زېږ ډول**: د و یناغږ و نه له آره د ساهوا

له ږيړ ط او ويجاړتيا څخه راڼغ ته کيږي. دغږ زيږ ډول دا مانا چې د وينا غږونې د زيږ پر وخت دانسان په اراده څه راز پيښيږي د ساهوا پر بهنګ راوړل کيږي. په دې توګه پښتو بېواک پرتمو، مښلو، نتم مښلو، او بلنو يا مايعو، پڼيږو يا ګړنسي او يا غنه‌يي ويشنه مومي( ۳-۱۲ ).

۳-۱۹: **کومکي وتوځي** ؛ هغو څرمه ييز وچارو (فعاليتونو) او کومکي پيښو ته وايي چې د انسان په وړلاړ (اراده) ترسره کيږي او د وينا ييز وغږونو له جوړښت سره آړه او سيده اړه نه لري، لکه: له خولې يا پزې او يا همهاله له خولې او پزې دواړو څخه د ساهوا ايستل.

که د يو غږ د زيږ پر وخت يوازې د خولې لار بېرته او د پزې هغه بند وي، هماغه غږ «خوله ييز بېواک» بولو، که د يو غږ د زيږ پر وخت يوازې د پزې لار بېرته او د خولې هغه بنده وي، راوتی غږ «پزيز بېواک» بلل کيږي او که د کوم غږ په زيږ کې د خولې او پزې لارې دواړه بندې وي، نو بيا ورته «ګړنسي يا غنه يي بېواک» وايو (۱).

---

(۱) الهام، روشی جدید درتحقیق زبان دری (۶۲-۶۴ مخ).

# ۳-۲۰- کړاوونه (تمرینونه)

۱- ژبه څه ته وایي؟
۲- ګرد ود څه ته وایي؟
۳- معیاري ګرد ود څنګه راپېژنئ؟
۴- څنځیري او ناځنځیري واحدونه څه مانا؟
۵- اواز (فونیم) څه ته وایي او څه ارزښت لري؟
۶- اواز په څو ډوله دی؟
۷- فشار یا ځغ له ډولونو سره په یوه جمله کې وښیاست؟
۸- څپه یا هجا څه مانا؟
۹- ګړ (مورفیم) څه ته وایي او کوم ډولونه لري؟
۱۰- ویی څه ته وایي؟
۱۱- غونډله (جمله) څه راز ژبنی واحد دی؟
۱۲- په غونډله کې کوم توکونه راځي؟
۱۳- نوموونه په څو ډوله دي؟
۱۴- نومځري به څو ډوله دي؟
۱۵- کړول څه ته وایي؟
۱۶- تاړي څو ډوله دي؟
۱۷- ژبني یا غږېزغري څه ته وایي؟
۱۸- وېنګي څه ته وایي او کوم ډولونه لري؟
۱۹- ژبپوهنه څه ډول پوهنه ده؟
۲۰- د ژبپوهنې څانګې راوپېژنئ؟
۲۱- پښتو به د ژبپوهنې په کومې څانګې پورې اړه لري؟
۲۲- مورفو- فونولوژیکې اوښتنې له ډولونو سره راوپېژنئ؟

# دویم پړک

# پښتو پښوونه (ګرامر)

ا۔ څېړګی

پښتو وازپوهه

## ۱- څپرکی:

# پښتو اوازپوهه - فونیمکس

۱-۱: دا برخه د پښتو پښتو ژبې (ګرامر) غږ پوهنې (فونولوژي) هغه برخه ده چې یوازې ارزښتناک غږونه (اوازونه - فونیمونه) څېړي. څنګه چې د هر اواز پېژند اېښت له دوو اړخو یا په بله وینا د ژبې د ول او ژبې ځای له مخې څېړل کېږي او جوتېږي، نو دلته له یوې خوا پر دوو ګوتو وتوځو (۳-۱۷) خوله پېژاو پرېږدو. بیا له ژبې ځای (۳-۱۵) او له بلې خوا د ژبې د ول یا په بله وینا چې په څه زور او شدت یا د غږیزو غړو د پراخه او تنګی او داسې نورو اغیزو له مخې ترسره کېږي، رڼا اچول کېږي. چې دا دی لومړی خپلواک او وروسته بیواک اوازونه له بېلا بېلو ځانګړتیاوو سره تر کتنې لاندې نیسو:

### ۱-۲: د ژبې د ځای له مخې:

ژبه د خپلواکو د وینګ پر وخت د خولې په د ننه کې د وو لوېو ته خوځون کوي. او له هوسا حالت څخه یعنې له لاندینۍ ژامې څخه د کومې لوړتیا او بل د ژبې د بېخ له ژبې نه د خولې مخنۍ برخې ته، یا په بله وینا له وروستنۍ د ژبې څخه مخنۍ د ژبې ته. او یا په دغو دوه ګونو خوځېږي

کې د ږې بڼې غــــوره کــــوي، په دې ډول:

### ۱-۳: له کښته پورته:

د ژبې سبکیني منځوال د ږغ، پورتني د ږغ. کوم خپلواک چې د مخته راتګ پر وخت یې ژبه سبکیني د ږغ ولري، سبکیني خپلواک بلل کیږي. لکه a - ā. که ژبه منځوال د ږغ ولري «منځوال خپلواک»، ورته وايي لکه: e - o - ə او که ژبه پورتني د ږغ ولري «پورتني خپلواک» نوموړ کیږي لکه: i - u.

### ۱-۴: له وروسته مخته:

وروستني د ږغ- مخني د ږغ او منځني د ږغ. مخني ږغ، کوم خپلواک چې د مخ ته راتګ پر وخت یې ژبه وروستني د ږغ ولري «وروستني یا تیاره خپلواک» نومیږي لکه: u - o - ā او که ژبه منځني د ږغ ولري «منځني خپلواک» بلل کیږي لکه: a - ə. او که ژبه پورتني د ږغ ولري، «پورتني خپلواک» نوموړ کیږي، لکه: i u.

### ۱-۵: د شونډو د ږغ له مخې:

د راز راز پښتو خپلواک غږونو د وینګ پر وخت د ژبې پر د ږغ برسیره د شونډو وینه هم په پام کې نیول کیږي. په بله وینا راز راز بڼې غوره کوي. یا عادي او ناګرده بڼه یا د هر خپلواک له ځانګړتیا سره سمه په بېلابېله ګڼه ګرده او دا بڼه یې بڼه نیسي. په دې توګه «ناګرد خپلواک» او «ګرد خپلواک» په ولونه سره توپیر پرې. ناګرد لکه: a - ā - e - i او ګرد لکه: u - o.

## ۱-۶: د لاندینۍ ژامې د ټینګوالي او سستوالي له مخې:

د ځینو پښتو خپلواکو ږغونو په ږغېدنګ کې لاندې ژامه ټش ټیول کیږي او ټینګ آکر (وضع) لري، نو کوم خپلواک اوازونه چې په دې توګه ویل کیږي، ټینګ (tens) ورته وايي، لکه: e-o-ā.
نور خپلواک چې د ویینګ پر وخت یې لاندې ژامه سسته وي (سست خپلواک) بلل کیږي، لکه: a-ə-u-i.
بل تو پیر یې دا دی چې کش یا ټینګ اوازونه نسبت سستو اوازونو ته اوږده اداکیږي او د دې خاصیت د سنجولو لپاره یې پرسر یوه افقي کرښه کښل کیږي، په پښتو کې څنګه چې سست ə، لنډ اداکیږي او کش ā چې اوږد اداکیږي، د وه بیل بیل فونیمونه دي نو ځکه یې په فونیمکي لیکنه کې د کش ā، پرسر باندې د اوږدوالي د علامې لیکل حتمي دي، خو د e او o دلیکلو لپاره په فونیمکي، لیکنه کې دا اوږدوالي د علامې لیکل په کار نه دي، مګر په فونیټیکي لیکنه کې بیا دا تو پیر باید څرګند شي.

## ۱-۷: د غږیز تارونو د زېږ د له مخې:

د سا (وچې، مرۍ په لوړه برخه کې حنجره (چنغړک) دوار و- د ننه د وه الونوته ځینو مرغیریو (عضلاتو) ځای نیولی دی چې له یو بل سره ریتجاعي او نزیو تاروڅخه جوړ شوي دي. د غږ تارونو غږیز تارونه وايي. د غږ ولو د جوړېدو پر وخت ساهوا د حنجرې له تشې نه د غږیزو تارونو له منځه تیریږي. که د ساهوا د تیریدو پر وخت چې د غږ زېږ د لپاره په کار لیږي، غږیز تارونه په عادي بڼه وي،

په بله وینا یو له بله سره لري وي، هوا له تارونو سره بې له کوم ټکره تېرېږي او تارونه نه رېږدي، نو داسې غږونه منځ ته راځي چې هېڅ-راز ښنګهار او موسقیت نه لري . دا راز اوازونو ته «ناغږن اوازونه» وايي. که د غږ د زېږد په وخت غږېز تارونه سره نژدې راورسېږي، په بله وینا د حنجرې تشه سره ورشي او د هغو مرغېږي سره راټینګ شي په دې توګه سا هوا تارونه په رېږد راولي او داسې غږونه رامنځ ته کېږي چې ښنګهار او موسقیت لري، دا راز اوازونو ته «غږن اوازونه» وايي. دا چې ټول پښتو خپلواك اوازونه د پیدا ښت پر وخت غږېزتارونو رېږد وي، نو له دې کبله ټول غږن دي (الهام ۵۲، ۰

۱-۸ : معیاري یاکره پښتو اوه خپلواك اوازونه لري چې د نومورو ارخونو، د غږېزو غړو د چارونو او آکرونو، په بله وینا د ژبې دا کرونو، د شونډو، د بنې او د ژامې د ستوالي او تینګوالي له مخې هر یو بیلا بیل ترکتنې لاندې نیسو :

۱-۹ : زور ( a ) : ښنګینی، منځنی او سست چې څه ناڅه لنډ ویل کېږي او زیا تره د ګړونو او ویېو په منځ او پای کې راځي، لکه په آکر akar کر- kar او پله pLa کې.

۱-۱۰ : الف ( ā ) : ښنګینی، وروستنی، ناګرد او تینګ واول دی. زیاتره د ګړونو او ویېونو په منځ او پای کې راځي لکه په څار cār او- ورا wrā کې . د ګړ په سرکې یې د هر لز څرك لیدل کېږي لکه په آر- ār او آر ār کې. د پارسي او نورو ژبو په سرکې چې (ā) وي؛

هم زیاتره په پښتوکې په (ه) اوړي، لکه په اوازawáz - ارزو arzó - ادم adám کې

۱-۱۱: زورکې "ə": منځوال، منځنی ناګرد او سست اواز دی چې بې له کندهاري ګړدود څخه په نورو ګړدودو کې زیاتره یوازې د ګړ په منځ او پای کې راځي. په سر او پای کې لنډ او په منځ کې لږ څه اوږد ویل کیږي. په سرکې لکه اباګانۍ əbāganə́y، په منځ کې لکه مشر məšə́r، کشر kəšə́r - په پای کې لکه خوله xwlə́ - تره trə́. (ه) په پښتوکې زیاتره څخه خېږ چې اوړي.

۱-۱۲: اوږده ي "ē": منځوال څخنی، ناګرد او کش اواز دی، دوه الوفونه لري. په سر او منځ کې اوږد او په پای کې لږ څه لنډ راځي. مثالونه یې دا دي: اوږد: دېر dēr - مستې masté - هېر hēr - شودې šodé

۱-۱۳: لنډه ي "i" پورتنی مخنی او ناګرد، سست اواز دی.

۱-۱۴: اوږد (و) /ō/: منځوال، وروستنی، ګرد او تېنګ اواز دی، چې څه نا څه لنډ ویل کیږي. په پیل او منځ کې زیاتره داوږد، بلغږ او په پای کې زیاتره لنډ بلغږ په بڼه راځي، لکه په: اور ōr، کور kōr او ځنګو zangó کې.

۱-۱۵: لنډه (و) /u/: پورتنی، وروستنی، ګرد او سست اواز دی، چې بې له دوه ګونو بلغږ ونو څخه لنډ دا ډېر دود لري، لکه په اوم um، زوم zum، ټټو taṭú، او بندله ug،dl، روږدل rūgdá، او وریځ uryáz کې.

۱-۱۶: **یادونه**: له /a/ پرته نور پښتو خپلواک د څوړوالي (کمیت) یا په بله وینا د اوږدوالي او لنډوالي د توپیر له پلوه کوم فونیمي توپیر نه، چې یوازې الوفوني توپیر ګڼل کیږي. په دې مانا چې ā, i – e, ē ... وویل شي په ګړوونو او ویونو کې مانیز ونجوړونه نه پېښوي. د ځړنګوالي (کیفیت) د توپیر له پلوه چې واز یا تړلي وویل شي، یوازې په ځینو ګړدودو کې فونیمي توپیر رامنځ ته کوي، لکه په ننګرهاري لیکونکی likúnkè او لیکونکې likúnke کې چې لومړی یې نرینه و دوستایی دی او په دویم کې ښځینه. همدارنګه د o, ō کمیتي توپیر فونیمیک ارزښت نه لري، د ساري په توګه د دري ګل (gol) په وړاندې پښتو (gwal) وویل کیږي. (د خپلواکو لنبتیلیک ۱-۱۹)

۱-۱۷: **تم بیواک اوازونه**: په پښتو کې له پور غږیز (ن، ق...) څخه پرته (۸) دي، ب - پ - ت - ټ - د - ډ - ک - ګ.

۱-۱۸: **ب** (b): غبرګشونډیز، غږن تم بیواک دی څخه ناخه سپک اداکیږي او ساییزه ځانګړتیا نه لري. «ب» له آره د «پ» غږنه بڼه ده، بېلګې یې دا دي: بر bar، بریت bret، خوب xob.
«ب»، د خپو ګړوویو او تړنګونو په سر، منځ او پای کې راځي. کله کله له نورو بیواکو اوازونو سره یو ځای غبرګ غونډونه جوړوي. په پای کې یې وینګ کله سست وي او کله ټینګ تم.

## ۱-۱۹ د خپلواکولبنستیلیک :

| د ژبې ارتفاع | د شونډو نمونه / د ژبې ځای | مخنی ناګرد | مخنی ګرد | منځنی ناګرد | منځنی ګرد | وروستنی ناګرد | وروستنی ګرد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پورتنی | سست | i | | | | | u |
| | ټینګ | | | | | | |
| منځوال | سست | | | ə | | | |
| | ټینګ | e | | | | | o |
| ښکتنی | سست | | | a | | | |
| | ټینګ | | | | | ā | |

۱-۲۰: پ «P»: غبرګشونډیز- ناغږن تم بېواك دى. څه ناڅه پياوړې ويل کېږي. دوينګ پروخت کله پیا وړې او کله کمزورې سايېزه لوسبه هم لري. که چېرې په ويي کې تر پياوړي غږ لاندې راشي، نوسايېز-توب يې زيات وي او که تر سپك غږ لاندې راشي، نو سايېزتوب يې څه ناڅه کم وي. په دې توګه نو موږ ی. بېواك دوه بلغږونه لري. يو څه سايېز او بل يو څه ناسايېز- بېلګې يې دا وروسته دي: پېڅ، ړپا، چپ، پړانګ. «پ» د څپو ګرڅوېيو او ترنګونو په منځ-سراو پای کې راځي او له ځينو نورو بېواکو او نيمواکو سره يو ځېيز غونډونه جوړوي. دوېيو په پای کې يې وينګ دوه ډوله دى. کله يې تم والى بېړته کېږي او کله نه.

۱-۲۱: د «d»: غابنيز غږن تم بېواك دى. څه ناڅه سپك ويل کېږي او سايېزه لوسبه نه لري. د «d» له آره د «ت» غږن ډول دی. د څپو ګرڅوېيو او ترنګونو په سر- منځ او پای کې راځي. دوېيو په پای کې په ازاد ډول کله له تم والي سره او کله يې تم والي ويل کېږي. له ځينو نورو بېواکو او نيمواکو سره يو ځېيز غونډونه هم جوړوي. بېلګې يې لکه: دړې dre - داد dād - دام dām او نور.

۱-۲۲: ت «t»: غابنيز- ناغږن تم بېواك دی څه ناڅه ډرونډ اداکېږي او لږ و ډېره سايېزه ځانګړتيا لري، چې له دې پلوه دوه بلغږه لري- سايېز او ناسايېز. هغه دا چې که تر سپك غږ لاندې راشي سايېزه ځانګړتيا يې کمېږي. وينګ يې د وېيو په پای کې کله

تموالی لري او کله نه. بېلګې يې لکه: ترېخ - تار - بېلتون - ټوټ.

«ت»، د څپو - وېيو ګر ونو - ترنګونو په سر - منځ او پای کې راځي. کله له څپو نو رو بېواکو سره یو ځای غونډ جوړوي.

۱-۲۳: ډ «ḍāl»: اوږدين غږن - غبرګ بېز - تم بېواك دی، لږ ډېر د رونډ ويل کېږي او څه ناڅه سايېز دی. «ډ» له آره د «ټ» غږن ډول دی، دوينګ پر څنډ يې ژبه غبرګېږي او ځينې د څو کې لاندې برخه له اوړيو سره نښلي او بيا په ډېرې چټکۍ سره ځای يو وار څوځون مومي، له دې کبله ورته يو وارېز رېنده غږ هم ويلای شو.

بېلګې يې په دې ډول دي. ډول dol - بډ bada - ډنډ dand.

«ډ»، د څپو ګر و - وېيو او ترنګونو په سر - منځ او پای کې راځي. له بېواکو سره ځای غونډونه هم جوړوي لکه: ډيل، ډال او نور.

۱-۲۴: ګ «g»: ورو ستی تالويېز (نرم تالويين) غږن تم بېواك دی څه ناڅه سپك ادا کېږي او سايېز رنګ لري. «ګ» له آره د «ك» غږن ډول دی. بېلګې يې دا دي: ګرم gram - ګر gar - لږګی largay. د څپو ګر و نو - وېيو او ترنګو په سر - منځ او پای کې راځي. کله کله له څپو نورو بېواکو سره يو ځای خپلواك غونډونه جوړوي، لکه په ګرم gram کې. تموالی يې د وېيو په پای کې تر څنډ د څنډه زياتره ېېر ته کېږي او کله بيانېږي.

۱-۲۵: ک «k»: وروستی تالويين - نا غږن تم بېواك دی - وينګ ...

ناڅه د روند دی، لزو د پر ساینز والی لري او له دې مخې دوه بلغږ، ساینز او ناساینز بلغږ و نه لري. هغه داچې که د دزانه خج په ځای کې راشي، نو ساینز والی یې زیات وي او که د سپك خج په ځای کې راشي نو ساینز والی یې څه نا څه کم وي - تم والی یې د وییو په پای کې تر لارې ډېره زیاته هیسته کیږي، خو که نوري څپې ورسره خنجنې راشي، نو تم والی یې کله یا تې کیږي او کله نه.

بیلگې یې دادي. کوډ - کلك او نور. «ك» د څپو وییو او ترنگو په سرمنځ او پای کې راځي د وینگ پر وخت له څنډو و غږ ونو سره یو ځینز غږ نه و نه جوړ وي.

۱-۲۶: مښلې (احتکاکي) (Fricative) بیواك اوازونه په پښتو کې له پو رغږ ونو (ف-ع-ح او نور و) پرته (۹) دي. س ز - ښ - ږ - خ - غ - هـ ...

۱-۲۷: س «s» او ریز ناغږن، موښلی بیواك دی. داچې وینگ یې شپیلي ته ورته دی او دادا کولو پر وخت یې د ژبې برنۍ مخ څه نا څه، غوڅه بڼه غوره کوي، نو ورته (صفیري = ناوبي) اوازهم وايي. (الهام د پښتو گرامر طرح ۳۵ مخ).

بیلگې یې دادي: سر- لاس او داسې نور. «س» د څپو - وییو - گمو او ترنگو په درې وارو ځایو کې راځي. کله له څینو نورو بیواکو او نیمواکو سره غږونه و نه جوړ وي.

۱-۲۸: ز «z» او دیز، موښن، غږن بیواك دی. دې غږ تصحم

ځيني پوهان صغيري غږ وايي.له آره د «س» غږ ن د ول دی.
بېلګې يې لکه: زړ zar - زيان zyan اونور. د خپو، ګړو، ويو او -
ترنګو په درې وار وخايو کې راځي اوځيني بېواك غونډ، وجوړوي.
۱-۲۹: «ش» «ش» اوږدکه - تالويز - ناغږن - موښن - صغيري بېواك
اواز دی. بېلګې يې دا دي: شل - شمبړ - کښر اونور. «ش» د
خپو، ګړو، ويو او ترنګو په هره برخه کې راځي، او په ځينو ځايو
کې بېواك غونډ، ونه جوړ وي.
۱-۳۰: «ژ» «ژ» تالويز - غږن، موښلی، صغيري بېواك اواز دی.
بېلګې يې دا دي: ژبه zba - ژوند zwand اونور.
«ژ» د خپو، ګړو، ويو او ترنګو په هره برخه کې راځي او په ځينو
ځايو کې بېواك غونډ، ونه هم جوړ وي.
۱-۳۱: «ښ» «ښ» د اغږ د پښتو په بېلا بېلو ګړدودونو (لهجو)
کې په بېلا بېلو د ولونو سره تلفظ کېږي. د «پېښور - ننګرهار»
په ګړدود کې د «خ» غونډي تلفظ کېږي. په منځني پښتو (وردګو - لوګر
اوغزني) کې يو وروستي تالويز ناغږن، موښلی، بېواك دی. د -
وينګ په ځينو برخو کې دژبې وروستۍ برخه د تالوله وروستۍ برخې
سره ښښلي، تر څو دسا هوا يو هنګ د اواز په زېږېدو کې مښښه
او سولېدنه وموږي. لکه: په دې وروسته بېلګو کې: پښتو -
سپار - اونور.
د خپو - ګړو - ويو او ترنګو په هره برخه کې راځي. کله کله

بیواك غونډونه هم جوړېږي، همدغه اواز (فونیم) د کندهار - هلمند او کوټې په ګړدودکې مخنی تالوییز - غبرګږ بیز - موښن - ناغږن «ږ» دی..

۱-۳۲: ژ «ž» : دا اواز هم د «ښ» په شان د پښتو په بېلابېلو ګړدودونو کې په بېل بېل ډ ولو ویل کېږي. په اصل کې د «ښ» - غږن نه بڼه ده. په ختیځ ګړدودکې د «ګ» غوندې تلفظ کېږي. په منځني (وردګ - غزني - لوګر) ګړدودکې یو د روستي تالوییز غږن - مښلی - بیواك دی، دوینګ پر وخت یې د ژبې وروستی برخه د تالو له وروستي برخې سره نښلي، تر څو د ساهوا بهنګ د اواز په زېږ دکې ونښته اوسولید نه وموږي، لکه په دې وروسته بېلګو کې: ږلی zalay - ږدن zdan او نور.

دخپو - ګړو - ویبو او ترنګو په هره برخه کې راځي - کله کله بیواك - غونډونه هم جوړوي.

همدغه اواز (فونیم) ګو (کندهار - هلمند - کوټې) په ګړدودکې مخنی تالوییز غبرګږبیز موښلی غږن «ږ» دی.

۱-۳۳: خ «X» : ژبه بیز - موښلی - ناغږن بیواك اواز دی. دخپو، ویبو او ترنګو په هره برخه کې راتلای شي او په څینو ځایو کې له څینو نورو بیواکو سره غونډونه جوړوي. بېلګې یې دا دي: خرام xpam - خیرن - Xirán مخ - max - سخوندر sxwandar او نور.

۱-۳۴: غ «ɣ» یا «ǧ» : ژبه بیز، غږن، موښلی بیواك دی.

«غ» له اره د «خ»، غږن ډول دی. د ژبنیو تڅکونو په هره برخه کې راځي
لکه په دې وروسته بېلګو کې: غوا - غر او نور

۱-۳۵: هـ - «h»: ستونیز - ناغږن - سایيز - موښلی، بېواک دی.
د څپو، وییو، ګړو او ترنګو په هره برخه کې راځي، خو په زیاتو
ځایونو کې په ځلواک (ه) اوړي او یا ګرد سره نه ویل کېږي.
لږ و ډېر یو ځېنې بېواک غونډونه هم جوړوي، بېلګې یې دا دي:
هاند - هیر - هېڅ او نور.

۱-۳۶: مایع بېواک اوازونه په پښتو کې (۳) دي (ل، ړ، ر).

۱-۳۷: «ل»: اوړیز غږن اړخیز (*lateral*) مایع بېواک دی. د ژبنیو
تڅکونو په هره برخه کې راځي او له یو لړ بېواکو او نیمواکو سره یو ځېنې
غونډونه جوړوي، بېلګې یې دا دي: لمونځ - لیار - ملا - لور او نور.

۱-۳۸: «ر»: اوږیز نااړخیز (*nonlateral*) رپاند بېواک دی. د وینګ
پر وخت یې د ژبې سر تالو ته ور نژدې کېږي، بیا ژر بېرته خپل ځای ته
راګرځي. له همدې کبله دې غږ ته رپاند هم وایي. د څپو، ګړو
وییو، ترنګو په هره برخه کې راځي، له ځینو غږنو سره بېواک غونډونه
هم جوړوي، لکه په دې وروسته بېلګو کې: ورور، ورځ، وروسته.

۱-۳۹: «ړ»: غبرګ لښېز، غږن پرپید ویکی (flapped) بېواک دی.
په وینګ کې یې د ژبې د څوکې لاندینۍ برخه راغبرګېږي او له
اوړیو ورځني تالو سره لګېږي او بیا ژر په چټکۍ سره کښته راپله
کېږي، د ژبنیو تڅکونو په هره برخه کې راځي او لږ و ډېر

له خیشوم او خولې دواړو څخه وزي او د ژبې څوکه د غاښونو له ورستي برخې سره لګیږي، لکه:
پړانګ - ورم - وبار - ښوار او نور.

١-٤٠: **پزیز (انفي یا خیشومي) بیواک په پښتو کې (٣) دي**
(م، ن، ڼ).

١-٤١: **م** (m): غبرګشونډیز بیواک دی. دوینا د توکونو په هره برخه کې راځي او له خیشومونو او غږونو بیواکو غږونو سره ښې یو ځای کېدلی شي، بېلګې یې دا دي: مار - مرچ - لمر - مور او نور.

١-٤٢: **ن** (n): غاښیز - غږن - پزین بیواک دی. دري غوره بلګې ورته یې په دې ډول دي: که تر غاښیز غږو (ت - د) وروسته راشي غاښیز (ņ) ادا کیږي، لکه د بند - ژوند - سنتره په کلمو کې. که تر واول یا اوریز اواز د مخه راشي او ریز (n) ادا کیږي لکه د انا - انار په کلمو کې. او که تر وروستي تالوییز - اواز (ګ - ک) د مخه راشي نو بیا وروستي تالوییز (ŋ) ادا کیږي، لکه: د انګار - انګور - زنګون په کلمو کې. سربیره په بلغږو نو (ن) کله کله په (م) بدلیږي، مثلاً کله که تر (ب) د مخه راشي، لکه په تشنبه - سنبله چې شمبه - سمبله ویل کیږي.

١-٤٣: **ڼ** (ɳ): غبرګرځیز - غږیز - بیواک دی چې څوکه یې د ژبې د خولې لاندینۍ برخه را غبرګیږي او د تالو له مخنۍ برخې سره ښتلي. سا هوا دېزې له لارې وځي لکه منه - بڼ او نور. (ڼ) د ګڼو ویو او توکو په منځ او پای کې راځي، خو د ویو په سر کې نه راځي

له نورو غږونو سره ډېر لږ بېواك غونډلونه جوړوي. مثالونه يې دادي: دنيا danyā او مانله mānala او نور.

۱-۴۴: څ « C » : اورېز، ناغږن، تم منبلي بېواك دى. دغه د غږپوهنې (آوا شناسي) له پلوه يو ترښتي غږ دى چې له تم (ت) او منبلي «س» څخه جوړ شوى دى. خو د اواز پوهې (phonemics) له مخې دغه غږ د نورو همزنګو غږونو په څېر ځانته يو بېلوزيني اواز بلل کېږي. وينګ يې داسې دى چې «ت»، تم غږ او «س» منبلي غږ دواړه سره يوه وخت له يوه زېږ ځي څخه د يوه اواز (فونيم) په توګه راوځي لکه په څار - څاروي - څانګه - څرېکه - څوری - غوځ - لوڅ او نور.
«څ» د ژبې نوکو په برخه کې راتلای شي او له ځينو غږونو سره بېواك غونډلونه جوړوي.

۱-۴۵: ځ « ژ » : اورېز غږن تم - منبلي - بېواك دى چې په سيستم‌پوهنه له منبلي (ز) او تم (د) څخه ګډ جوړ شوى غږ دى خو د اواز پوهې له مخې يو بېلوزيني اواز (فونيم) بلل کېږي او د (ځ) غږن د ولې دى. بېلګې يې، لکه: ځان - ځاى - ځاځ (قسم)، ورځ - وريځ - ځمکه - ځنځير - لوبياځ - مېنځ ..... (ځ)، د ځپو ګړو، وېيو او ترنګو په سر، منځ او پاى کې راځي او له ځينو غږونو سره بېواکغونډلونه جوړوي لکه: ځوږ - ځوړند - ځوان .....

۱-۴۶: چ ( č ) : اورېز يا زېږ تالويز - ناغږن تم - منبلي - بېواك اواز دى. په فونتيکي ډول له منبلي «ش» او تم (ت)

څخه رغیدلی دی، خود پښتو اواز پوهیز (فونیمکس) نظام له مخي دیوه یوازیني (افریکات) اواز بڼه غوره کوي. په وینګ کي «ت» او «س»، له ژبي د څوکي څخه همهال راوځي. د ویلو په پیل پاړاو مخ کي راځي او له ځینو غږ ونو سره یو ځای بیواکغونډي جوړوي، لکه: چای - چولایي (یو راز بوټی دی) چرچه - چور سوچ - وچ - غوټچ (غصه)....

۱-۴۷: ج (ǯ): او دیز یا زبڼ تالوییز غږن یتم - مبنلی - بیواک اواز دی. د سپینټو هي له پلوه د (ځ) او (د) له ګډون څخه یو-رغیدلی اواز دی، خود پښتو فونیمکي غونډ ال (سیستم) له مخي یو یوازیني اواز (فونیم) دی. په وینګ کي یې (د)، او (ځ) له یو ځای څخه او ژبي د څوکي څخه یو وار غږګ راوځي او له آره د (چ) غږن ډول دی. د ساري په ډول که په سست د ریځ، لکه پاړی کي راشي د (چ) غوندي ویل کیږي، لکه په خوږج (کان بزرګ و مهم) یا جاج کي. د ځینو - ګړو - ویېو او ترنګو په سر- مخ او پای کي راتلای شي. بیواکغونډه ونه یې، لکه: جاج - جوار نجل - نجلي....

۱-۴۸: نیمواکغږونه - semi-vowel:
هغه اوازونه دي چي وییل کیږي چي د خپلواکو او بیواکو اوازو ترمنځ منځګړتوب کوي. په بله وینا د دواړو خانګړتیاوي لري. که د ځینو ژبي (هسته) وګرځي، د خپلواک بڼه اخلي

او که د ښې ژبې زړی ونه ګرځي، نو د بېواك په بڼه څرګندېږي
او د حغه چار پېر غاړه اخلي. پښتو دوه نيمواکه لري: و= w،
ی= y.

۲-۴۹: و= W: خپلواك اواز - ناڅپيز (غير هجايي) يا په بله
وينا بېواکه بڼه ده. د اما ناچې که دغه نيمواك و= w د ښې ژبې
شي، نو خپلواك کېږي او که نه نو بېواك کېږي. دا نيمواك د ښو
ويېوګړو او ترڅو په هره برخه کې راتلای شي او په وينګ کې
يې د واړه شونډې سره نژدې کېږي. لکه په دې ورو سته وييوکي:
ور= war - خوږين= Xwrin - نو= naw - ولور= walwár - خوله
- Xwla - شخوند ṡxwand ....
د (W) نيمواك د ښې پيل او منځ کې راځي او په پای کې يې يوازې
غږ ګڼ (ديفتونګ) د دويم غږي په توګه. (W) د يو غبرګ
شونډ ين اواز په توګه يې په وينګ کې د واړه شونډې سره نژدې کېږي سګر ده بېه غږلې
۱-۵۰: ی= y: نيمواك اواز دی، خپلواکه ناڅپيزه يا بېواکې
بڼه ده. د اما ناچې که د ښې زړی وګرځي، نو خپلواك اواز دی
او د (ی= y) په څېر ويل کېږي، خو که کله د ښې زړي په
توګه ونه کارول شي او څپه جوړه نه کړي، نو بېواك اواز دی.
په وينګ کې يې ژبې ارخونه تالو خواته هسك کېږي او د ژبې
نوري خانګړتياوې يې له (ي= i) سره دومره توپير نه لري.
(ی- y) هم د (و- W) غوندې د ښې په پيل او منځ کې راځي

او بای کې یوازې د غبرګغږ (دیفتونګ)، د دویم غږي په توګه راتلای شي، لکه په: یو، yaw، زیر، zyar او سړی saṛay کې.

## ۱-۵۱: غبرګغږونه - واکهٔ مرکب diphthongs:

پښتو غبرګغږونه د خپلواکو او نیمواکو اوازونو له پرله پسې والي او یوځای والي څخه منځ ته راځي. په بله وینا هر پښتو غبرګغږ دوه فونیمي توکونه لري، لومړی توک یې خپلواک او دوهم یې نیمواک وي. له همدې کبله پښتو غبرګغږونه د غبرګو اوازو په توګه شیړل کیږي نه د پیوستو اوازو په توګه.

څنګه چې پښتو نیمواک (۱-۴۹) دوه دي، نو غبرګغږونه یې هم په دوو ډلو ویشل کیږي:

۱- د «و- w» غبرګغږونه ۲- د «ی- y» غبرګغږونه.

د «و- w» غبرګغږونه په لیکنۍ پښتو کې په لاندې ډول دي:

۱-۵۲: iw - لکه په: تریو triw کې.

۱-۵۳: ew - لکه په: لېو lew کې.

۱-۵۴: aw - لکه په: لو law کې.

۱-۵۵: āw - لکه په: پړاو pṛāw او لګاو lagāw کې.

۱-۵۶: əw - لکه په: کټو kaṭəw او بزو bazəw کې.

دغه ټول غبرګغږونه د ویې په پای کې راځي، «سه» او «سة» پر دې سربېره په سر او منځ کې هم راځي.

د «ی-y» غبرګ غږونه په الیکنی، پښتو کې په دې [illegible]
ډول جوړېږي:

۱-۵۷ «ay»: لکه په ایوان (خونه) *aywán* میره = *Mayrá* او
وری = *wray* کې.

۱-۵۸ (āy): لکه په: ائینه *aynā* ځایګنی *jāyganay*
او ځای *jāy* کې.

۱-۵۹ «əy»: لکه په: نری *narə́y*، ډوډی *dodə́y*، ګولی *golə́y*
او ډانګ ډبلی *dāng dabalə́y* کې.

۱-۶۰ «uy»: لکه په: خوی = *xuy*، بوی = *buy* او دوی *duy* کې.

۱-۶۱ «oy»: لکه په: زوی *zoy*، دوی *doy* [illegible]
او سوی = *soy* کې.

له دغو غبرګونو غږونو څخه ځینې یوازې د ویې په پای
کې او ځینې یې په سر، منځ او پای کې راځي.

## ۱- ۶۳: کوچنۍ ترمینه جوړه : minimal pair

ژبه یو داسې عنونل ال (سیستم) دی چې هره نښه (سمبول) یا توک (عنصر) یې له بل هر بل هغه سره توپیر لري. په دې توګه که وغواړو د یوې ټاکلې ژبې د یوه توک آروالی یا په بله وینا د هغه ژبني ارزښت جوت کړو، نو له خپل ژبني چاپېریال سره یې له بل یو داسې ژبني چاپېریال سره ترکتنې لاندې نیسو چې دواړه چاپېریاله نور له ګڼو پلوه ورته وي، مګر یوازې یو توک یې ور سره بدووالی (تقابل) جوړوي او تر دا منځ مانیز توپیر راولي، نو بیا وایو چې په دغو دواړو چاپېریالو کې نومړي دوه توکه سره مخامخي (تقابل) جوړوي یا په بله وینا که دغه دواړه توکه له دواړو چاپېریالونو څخه وایستل شي، پاتې چاپېریالونه سره یو راز کېږي.
دغسې دوه توکه (کوچنۍ ترمینه جوړه) بلل کېږي.

د اوازونو (فونیمونو) کوچنۍ ترمینه جوړه لکه /پ/ : /ت/ په دوو چاپېریالو (ویېو)، "پور" او "تور" کې. ځکه دلته وینو چې له یو دوه اوازپرته نور اوازونه په دواړو ویېو کې یو راز دي او یوازې په هغې توپیر پېږي چې په یوه کې /پ/ ده او په بل کې /ت/.
په همدې ډول وایو چې /پ/ او /ت/ دواړه د پښتو ارزښتناک غږونه (فونیمونه) دي؛ ټول (۳۶) واړه پښتو اوازونه په همدې توګه جوړې منځ ته راوړي او جوتیا مومي.
د ګړونو کوچنۍ ترمینه جوړه، لکه: پلار او مور په پلاروالي او مورولي کې.
او همداسې نور لوی ژبني یووفونه (واحدونه) (اوریښ ۴۲ او ما ریړ پاړی ۱۵۴).

# ۱-۶۴: کړاوونه (تمرینونه)

۱- پښتو اوازونه په کوم ترتیب د لوړښت کېږي، په عزیزه ابېڅي یې ولیکئ.

۲- پښتو متول څو اوازونه لري او څلواکه او بېواکه یې له سره څنګه توپیر دي؟

۳- د څلو اکونو زبرو د ول کې د ژامي د ژیح څوه ورله دي، د یې زموږ!

۴- زور کې د ی، دژبې او شونډو دلېږه څه د ول څلواکه دي؟

۵- زور او الف (a-ā) سره د زبرو لړځي څه توپیر لري؟

۶- ایا په پښتو کې د څلواکو لنډوالی او اوږدوالی کوم تونیکي توپیر په پښتو لاس شي؟

۷- پښتو بېواکه رزبرو د ول لړځي پر کوم ډول لوړښت کېږي؟

۸- په معیاري پښتو کې «ه» او «ن» د څه ډول اوازونه دي او په کنډرې او څنګه یې د دوی یې زبرو ډول او دوتوي څنګه توپیر دي؟

۹- د ځ، څ، ځ، ج، چ، غ، ږ، او ژ په بېواکونو ونوکې وښایاست!

۱۰- پښتو د څلو بېواکو اوازونو لیاره کوم کوم وتوځي لري؟

۱۱- پښتو غبرګغبزونه څنګه جوړېږي او له هغه یې ولیکئ؟

۱۲- (ب = b) په «برمه» او «چوب» کې سره څه توپیر لري؟

# دویم څپرکی

## ۱- ګړپوهه (صرف *Morphology*):

ګړپوهه د پښتو هغه برخه ده چې د ګړونو (مورفیمونو) له رغاونې، اوښتون (ګردان)، او د هغو د ځېلونو (ډولونو) سره سروکار لري.

۲- ګړ: هغه کوچنی ژبنی مانیز توک یا مانیز یوون (واحد) چې که وشنل شي اوازونه ترې لاس ته راځي او په دې توګه خپله مانا له لاسه ورکوي.

۳- څانګې: ګړپوهه د ګړونو د ډولونو له مخې په دوو څانګو وېشل کېږي: یوه د اوړېدونیو (ګردانېدونکو) ګړونو څانګه او بله د نه اوړېدونیو ګړونو څانګه. د اوړېدونیو ګړونو څانګه بیا دوې برخې رااخلي:

۳-۱- نوم ګړپوهه.

۳-۲- کړ ګړپوهه.

۲-۴: نوم گرپوهه:
په نوم گرپوهه کې د نومونو د ولونه او د هغه اړونونه (گردانونه) څېړل کېږي.

۲-۵: نوم: هغه ویی دی چې بې له زماني اړیکي (د کړه تویپین) د راز راز څیزونو او ښکارندو (پدیدو) څرگندونه کوي لکه: تېږه، لرگی، سړی، سړیتوب، ښایست، روغ، روغتیا، روغوالی، زه، ته، دی، یې، دوه ....

۲-۶: د نومونو ولونه:
نومونه په څلورو ډلو (گروپونو) ویشل کېږي:
۲-۶-۱: څیز نومونه (اسماء).
۲-۶-۲: ستاینومونه (صفات).
۲-۶-۳: شمېرنومونه (اعداد).
۲-۶-۴: نومځري (ضمایر).

۲-۷: دَ نُوم اَوُوړُونِي اړَخُونَه:

نوم په تولیز ډول له درو اړخونو (جوهو) له مخې اووړون مومي لکه: نومږی، کمه، پېرۍ. څو څلورم ډول (نومځري) یې پر هغو سربېره د یو بل اړخ (وگړي) له مخې هم گردانېږي.
۲-۸-۱- نومږی (جنس): چې نوم نارینه دی لکه گیدړ، سوړ،

یا ښځینه، لکه: ګیدړه- سره.

## ۹-۱: د نرینه نوم نښې: دا وروسته نوم‌ونه زیاتره نرینه دي:

۱-۹-۱- چې وروستی اواز (فونیم) یې ښوالک (کنسوننت) وي، لکه: کور، ختیځ، هلک، غټ‌ویاړ، هیواد، غوږځنګ، اورمیږ، لاس، پټ، چرګ، ځینې وده (مشتثنې)، زیاتره دخپلوانو نوم‌ونه لکه، خور، مور، ترور، نږور، تندرو، ورندار، تندار. یا هغه ښځینه نوم‌ونه چې په وینګ کې زیاتره خپل پای خپلواک غږ څوي، لکه: ستن، څنګل، لار، ترخځ. همداران ډز (دزې)، اومټ (منټې).

۲-۹-۱- له زورکې والی «ی» (ay) او (دد)، پرته هر نوم چې په غبرګغږ (دیفتونګ) پای ته رسیدلی وي، نارینه دی لکه: لرګی، سړی، ځای، زوی، لوی، ځارندوی، پېژندوی (مشهور بوی)، خوي، کندو، لو، جراو، پړاو، کړاو، نیاو، لیو، تریو.

۳-۹-۱- هغه نوم‌ونه چې په زورکې پای کېږي، لکه: تره، واره، پسه، زړه، لیوه. ښځینه وده لکه: خوله، ویاله، ترله.

۴-۹-۱- هغه نوم‌ونه چې په لنډو «و»، پای ته رسیږي لکه: چاکو، تمبو، یابو اردو (عسکري)، لاتو، لاهو، کاهو، ماکو، پیتو، پیښاو (مقلد)، ساټو (باجه)، ساهو (ازاد)، بازو.

## ۲-۲: د ښځینه نوم نښې:

دا وروسته نوم‌ونه زیاتره ښځینه نښې (پایلې) لري:

۱ـ له زورکي او لنډ (و) پرته هغه نوموونه چې په خپلو اکوا(ولو) ...
پای ته رسېدلي وي لکه: ادي، ناوې، خور. ولې، ښادي، ورځ...
والي، وراني، پښه، منښه، پڼه، ښځه، رڼا، برېښنا، بېديا، لورتيا...
ښځا، ځلا، ورا، بلا، خندا، غلا، ملا (کمر)، ښا، ويسا، ښښتيانا...
اريانا، پېښو، زانګو، درخو، بېو، پېلبو (برېښنا)، ښادو، بېزوا...
بېدوده، لکه: دادا (پلار)، ماما، کاکا، لالا، بېرا، بدا (مقابل بوميا...
(پېښوا)، هوسا، جليا، مليا (باغوان)، کوڼا، رونډا، سبا، ميلمه،
کورېه غوبه، لربه، بوده، خرو.

۲-۱۰-۲ ـ د سه په غبرګون پای کېد ونکي نوموونه، لکه: کټو (کټوه)، ...
۳-۱۰-۲ ـ په زورکي والي (ی) (غبرګون) پای کېد ونکي نوموونه، لکه دوړې...
هوسۍ، کبلۍ (غزال)، شړۍ، مرۍ، اډۍ (کوردخورد)، ډۍ اکلک...
متۍ، ګډۍ (فاحشه)، اريکه، مسند، قنجوعه)، نجلۍ، مڅۍ (بدلګر...
نجلۍ، معما، چيستان)، ټنګۍ، شپېلۍ....

## ۲-۱۱: د ګڼې (عدد) نښې:

۲-۱۲: الف ـ د نرينه ګڼې (جمع) داور وسته ړول دي:

۲-۱۳-۱: ـ ان: زياتره هغه نارينه نوموونه د برګري (جمع) کوي چې بېوا کېا...
اوسا والاوي لکه: پرانګان، هلکان، پچان، کبان، چګاښان...
ځيني خپلواک پای نرينه نوموونه لکه: ليوان، بنتوران، اسان (اسونه)، پسان (پسونه)...

۲-۱۳-۲ ـ ونه: زياتره بېوا کېا پای بې سانرينه نوموونه د برګري کوي لکه...
سيند ونه، د ګډ ونه، مېزونه، کتابونه، لاسونه، نښونه، سرونه...

پلونه، خوبونه، بوبونه، نوبونه، وربونه.
ځینې خپلواکې پای نرینه نومونه، لکه: ترونه، وریرونه، زرونه.
ځینې ساوالا بېواکې پای نرینه نومونه، لکه: پلرونه.
۳-۲۱- زورکی (ه): ځینې لنډ څپیز او خپلواک (وای) منځې نرینه نومونه د پرگړې کوي، لکه: خره، غـلـه، دښمنه، مله، مره، وازره، پښبتانه، ښپانه، خوار ه، تراخه (ترخه) ژیړو، زرینه (زاړه)، ماغزه.
۴- لنډه «ي» (ئ): هغه نومونه د پرگړې کوي چې په زمه «ی» (ay) پای وي، لکه، لرگي، سړي، ځلمي، لښتي، غوبي، ولي، ترکي، پیاوړي، ژوي، گوي (غاښي).
ددې وروستاري هېجاې «ان» او «ونه» هم لن و د برراځي، لکه: ځلیان، غوبان، وییونه، خوریونه.
۵- یان: د «ان» بلگړدی او ځینې غیرگپای او خپلواکپای نرینه نومونه د پرگړې کوي، لکه: میرزایان، اشنایان، سویان...
۶- گان: چې «ان»، هېجاړی ده او ځینې خپلواکپای نرینه نومونه د پرگړې کوي، لکه: سنداگان، لاېتوگان، آلدوگان، هتوگان، ماماگان، کاکاگان، لالاگان، بېراگان، بداگان (پلي)، بوداگان.
۱۳- ب- د ښځینه گڼې (جمع) لښې:
الف- اوږده (ي): هغه ښځینه نومونه جمع کوي چې په زور «یا زورکې»

پای ته رسي، لکه منۍ، پزۍ، خولۍ، وېالۍ، وړانګې، څانګې، سانګې
(نیزې)، پانګې، ډېوې، شونډې، سکروټې، پلې، ټټکې ټکالي، ملې، غلې
خرې او......

۲-۱۳-۲- زورکي واله "ی"، "ۍ"، "ئ"، : هغه ښځینه نومونه د برګرې کوي،
چې په لنډه "ي"، پای ته رسېدلي وي، لکه وداني، خپلوي، ښایسته
ناروغي.....

۲-۱۳-۳- وې "ۍ": هغه ښځینه نومونه د برګرې کوي چې په الف، یا
اوږده "و" پای ته رسي، لکه: ژړاوې، خنداوې، ملاوې، نڅاوې
رانګووې، پیلبووې، ښکالووې، پېزووې.
بل انډول یې ګانې، هم راځي، لکه: شاګانې، نڅاګانې، برېښناګانې
زانګوګانې، پېزوګانې، هداراز ورېندارګانې، ننداړګانې.....

۲-۱۳-۴- انې: زیاتره هغه ښځینه نومونه د برګرې کوي چې پای ته
یې لنډه "ي" راغلې وي، لکه: سپېدانې، شاه بانې، او دیوې بلې
ښځینې د انډول په توګه، لکه: نوبیانې، مزدورانې، ترورانې-
(ترېندې)، مورانې (مېندې).....

۲-۱۳-۵- ینډې: هماغه ښوالکپای خپلوان نومونه د برګرې کوي،
چې ورسره لنډون موجي، لکه: مېندې، خویندې، ترېندې، نندارېندې،
ښنږبېندې.

۲-۱۳-۶: ضرد امانا چې په زورکي واله (ی)، باندې پای نومونه یې له
کومې ښځې د د برګرې په توګه هم راځي، لکه: کرکه، بجلۍ، دوړه،

خپلی، تیتری (واسکټ). بلګرېږي «یاني» هم یو څه دود لري، لکه:
کړکیاني، بجلیاني، کوچیاني، موچیاني، کبلیاني، کنچنیاني - جینکیاني، تروریاني (تروری).
بېدوده (مستثنی)، لکه: نجوني اونجونه، لوني، یوني.

۳-۱۴- پېریا حالت: چې نوم پخپل چاپېریال (غونډ یا غونډله) کې څه حالت لري، لکه پلوشه راغله، پلوشې ډوډۍ وخوړه، دپلوشې ورور ناروغ دی، له یوه لاسه ټک نه خېږي. دلته گوروچې - (پلوشه - یو - لاس) څنګه خپل حالتونه اوښي بدلوي.
په پښتو کې د یو نوم پېر د کړوال چار (فعلي عملي) او ویکوالو له مخې څرګند پرېږي او د پېر نښې یې هماغه پایلي یا وروستاړي دي چې په پای یې پوري یې نښلي. نو پېرونه یې دا وروسته لولو دي:

۱-۱- کړند پېر (فاعلي حالت): لکه خلمي ډوډۍ وخوړه، - خلمی راغی، خلمی ډوډۍ خوري. په دې دریو غونډلوکې خلمی کړند پېر لري، یا په بله وینا په دریو واړو ځایو کې خلمی کړند (فاعل) دی.
۲- لنډکړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت)، لکه: بارک او به وڅښلې، بارک پلوشې ته لیکی (کتاب)، ورکړ خوا زک پلوشه وهله. په دې غونډلو کې (او به، پلوشه، لیکی) لنډکړي (بې واسطه مفعولي) دي یا په بله وینا لنډ کړي پېر لري.

۲-۱۴-۳- لرکړی پېر (بالواسطه مفعولي حالت): لکه ببرك زمرك ته لیکاڼی (قلم، ورکړ. غرزی ماته روسي ژبه رازده کوي، سنك اڅك ته خبره وکړه. په دې جملو کې «زمرك»، «اڅك» او «ما» لرکړی دی یا په بله وینا دغه درې واړه نومونه لرکړی پېر لري او په همدغو جملو کې (لیکاڼی، خبره او روسي ژبه) لنډ کړي بلل کېږي، یا په بله وینا دغه درې واړه نومونه لنډ کړي دي.

۲-۱۴-۴- لوښن پېر (الي حالت): دا هغه نوم دی چې د لوښي یا آلې په وسیله یو کار ترسره شوی وي، لکه: ثریالۍ په بیاتي ژوبل شو، بریالي په لیکاڼي لیك وکېښ، ګلخانګه په کاشوغه ډوډۍ خوري. په دغو درېو بېلګو کې (بیاتي، لیکاڼی او کاشوغه) لوښن یا آلي نومونه دي او په دې توګه لوښن پېر لري.

۲-۱۴-۵- تولپېر (اضافي حالت):

هغه نوم چې یو بل ورپورې اړه ولري، تولنوم (مضاف الیه) ګڼل کېږي او تولپېر (اضافي) حالت لري، لکه: د ویالې اوبه ښې دي، د زمري کور ښکلی دی، د اسمان ستورې په ورځ کې پټېږي. (ویالې، زمری او اسمان) تولنومونه دي یا په بله وینا دغه درې نومونه تولپېر غوره کړی دی.

۲-۱۴-۶- وتون پېر (منشایي یا مفعول منه حالت):
دا هغه نوم دی چې یو نوم د کار پیلیځ (منشاء) ګرځېدلی وي، لکه له کندهاره

راغلم ، له سبوسبه زبړي له بدو واسبه زبړي. د لته (کندهـار ه-
-سبو، بدو) وتون پیر لري.

۲-۱۴-۷- **تون پیر (ظرفي یا مکاني او زماني حالت)**: همدارنګـه
**مفعول الیه یا استقـامتي او معیتي حالت**، هغه حال نوم
یا ځای نوم چې دیو کار ظرف ګرځېدلی وي او یا ورته یو کار متوجه
شوی وي، تو نښوم بلل کېږي او په دې توګه تون پیر لري، لکه: پـه-
کوړکې خوك نشته، په شپه کې خلك ډیر ګرځي، زه دوږځې-
کار کوم. د لته (کوډ- شپه او ورځ) تونپیر یا ظرفي حالت غوره کړي
دی.

۲-۱۴-۸- **بلن پیر (ندائیه حالت)**:
چې یو نوم ته بلنـه یا غږ شوی وي، بلنوم (منادئ) بلل کېږي او
حالت ته یې بلنیر وایي، لکـه : یه هلکـه ! یه خلکو! واځلمیه!
دلته (هلك، خلکو او ځلمیه) بلن پیر لري.

۲-۱۴-۹- **یادښت**: که یو نوم په کوم پورتني پیر کې خپلې ښې ته بدلون ورکړي،
وي، او ښتی نوم بلل کېږي یا په بله وینا هغه نوم
او ښتی پیر (مغیره حالت) لري او که او ښتنه یې نه وي، مونږ لې
نو آر نوم ورته وایي او حالت یې آر پیر (اصلي حالت) بلل کېږي.
۲-۱۵-۱: د نوم پیر (اسمي حالت) ښې (پایلې) زیاتره له ګڼې (جمع) هغو
سره سمون لري، لکه ځلمی - د ځلمي - پلوشه د پلوشې، شپون -

د شپانه، غل ـ غله....

پرته له «ان» او «وې» او د هغو له همچارو (لیوان، سیندونه، بیبیانې، شادیانې، ژړاوې) او د بېوالکپایو ښځینه نوم‌نو، لکه (میندې)،

۲-۱۵-۴: د برګرې (جمع) نومونه بیا په یومخیز ډول او ښتی پېرېږ (و، ښي) لکه: د ښځو، سړیو، هلکانو، خویندو، بربېښناګانو....

په دې توګه په «ان»، «وې»، «ونه»، «انې»، «یندې» او د دوې په نورو همپانو روستاړو جمع کېدونکې نرینه او ښځینه نومونه له «وتون پېر» او «بلن پېر» پرته نوره اوښتنه نلري. البته په «وتون» او «بلن پېر» کې بېوالکپای نومونه خپل پای په «زوروتو» یا (فتحې)، او «زبرونو» روستاړي کوي، لکه: په «هلکه» یه مورې! له «هلکه» له مورې.. د اوښتونکو نومونو فورمول په دې ډول دی:

۲-۱۵-۴: زه، ته (د حال مفعولیت پرته)، دی، دا، هغه، هغه، څوک سړی، ښځه، پښتون، هلکان....

+ وییکې (ادات)، یا د لېږندتېرمهال کړنو والی (متعدي ماضي فاعلیت)

= ما، تا، ده، دې، هغه (په زورکې) هغې، چا، سړي، ښځې، پښتانه، هلکانو....

## ۲-۱۶: نا وښتوني (تغیرنه منونکي) نومونه:

ځینې داسې نومونه شته چې په یوګړي بڼه په شپږ وپېر ونوکې کوم جلین اوښتون (تغیر) نه مومي، بلکې ځینې یوازې په وتون پېر او

بلن پیرکي او بښتون مومي، او هغه دادي:

الف- پایښو مونې: لکه: کاکا، ملا، دادا، پښتیانا، اریانا، پکتیا، سبا، یما، کنیشکا، لورتیا او .... چې په اتو وارو پیروتو کې او ښتون ټومي.

۲- و- پای نومونه: (لنډیا او بند) لکه: زانګو، بیزو، ډزو، تتو.

۳- درنه. ی. پای نومونه: لکه: نجلی، لیونی، خوګی، سپوږمی

۴- زورکې پای نومونه: لکه: نیکه، تره، زړه، وراره، واده ....

۵- ځینې زورپای (سنای) نومونه: چې هم ښځینه کاریږي او هم نرینه او څه ناڅه له دري سره ګډون لري لکه: دا ده، دا ده- (بریان) ښایسته، ساده، پیاده، شهزاده، میلمه، کوربه، غوبه بوده ... دلته یوازې ځینې ښځینه نومونه بدلون مومي.

۱-۵-۱۶- زیاتره بیا کپای ښځینه او هغه بیوا کپای نومونه چې په زورکې نه ګړیږي کیږي لکه: یه موری! یه توری! یه خوری! یه وروره! یه پلاره!

۲-۵-۱۱- وُی عبرګغز پای نومونه لکه: یه زویه! یه پوهندویه! یه سا تندویه! لویه! سویه!

۳-۵-۱۶- وي عبرګغز پای نومونه لکه: یه بویه! یه خویه!

۲-۱۷- د نومونو څلور ګوني ډلې:

۲-۷-۱- لومړی څیز نوم (اسم):

څیز نوم چې دودیز (عنعني) ژبپوهان یې اسم بولي، یو داسې نوم

دي چې نيغ په نيغه د يو شي يا سبکارندې (پديدې)، نوموونه (نامګذاري) او څرګند وونه کړي او داورووسته د ولونه لري:

۱- پژنوم (ذات اسم): چې په يو سنګرېدونکي (حس کېدونکي) شي اړه لري، يا په بله وينا داسې يو شي نوموي چې زموږ په حواسو حس کېدای شي، لکه: دبره، لرګي، اوبه، هوا او داسې نور.

۲- مانا نوم (مانا اسم): چې په يو نه سنګرېدونکي (غير محسوس) شي يا په لنډه وينا په يوې سبکارندې (پديدې) پورې اړه لري او هغه نوموي، لکه: ښايست، رښتيا، روغتيا، هيله، ننګ يت، مېړانه، پياوړتوب، رخه (کينه)، خوښي، خوږ (درد)، وېر زغم، انديښنه، لوېي، درناوی، سپکاوی، ښېګڼه، بدي....

۳- ځانګړنوم (خاص نوم): چې يو ځانګړي شي، پديده وګړی، يا ځای نوموي، لکه: پښتو ژبه، پښتونوااله، خوازك، زرمينه ننګرهار، کندهار، پکتيا، هند، ايران....

۴- ټولنوم (عام اسم): داسې شي يا سبکارنده نوموي چې ځانګړي او خاص نه وي، بلکې د ولونه او ځلونه ولري، لکه: ونه، هلك، نجلی، هېواد، څاروی، وګړي، اولس، ترون، ژمنه....

۵- ډول نوم (جنس اسم): چې په يو نه شمېرېدونکي شي (جنس) اړه لري، لکه زر، اوبه، اوسپنه، اور....

۶- غونډ نوم (جمع اسم): چې يوه ډله او غونډ نوموي، لکه: ټولی ټولګی، ګوند، تير، ګودم (باده)، رمه....

۷- آنگینوم (صوت اسم): چې د طبعي یا صنوعي اواز ونو انګی یا انګازه (پژواک) نوموي، لکه: درز، ډوز، درزی، درزا، درزهار، ګرپ، ګړوب، ګرپی، ګړ بهار، ترپ، تروپ ....

## ۱.۲.۱۱ دویم- ستاینوم:

ستاینوم (صفت) چې په خپلواک ډول څه نه نوموي، بلکې د یو څه ځرګوالی نوموي؛ یا په بله وینا یو ستاینوم په یو څیز نوم آړه لري او د هغه ځرګوالی ښيي، لکه: تود، سوړ، غټ، ووړ، تور، سور، ښکلی، ښایسته، غښتلی، کمزوری، روغ، ناروغ....

په پښتو کې ستاینوم د لوړتیا د پوړ ونو یا د لړ والي، ډېروالي، سستوالي او تړند والي، بېلابېلې ښکاره د رې ګونې د رجې نلري، لکه په دري ژبه کې: به- بهتر- بهترین، یا بزرګ، بزرګتر، بزرګترین.

له دې کبله یو پښتو ستاینوم د ویکور ادانو په ملتیا خپل- پوړ ونه یا درجې او طبقې ښکاره کوي، لکه سپینه- ډېر سپینه- لا ډېره سپینه یا سپین- ډېر سپین خورا سپین- تر ټولو سپین- زښت زیات سپین او داسې نور.

## ۱.۲.۱ د ستاینوم ډولونه:

ستاینوم په دوه ډوله دی: ۱- لنډ ۲- لر.

۱- لنډ ستاینوم: هغه دی چې تر څېزنوم دمخه او ور سره جوخت راځي او لنډ په لنډه یې ستایي، لکه: توره دړه، روغ سړی، ښکلې نجلۍ....

۲- اوږد ستاینوم: هغه دی چې تر څېزنوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مُسند) سره پیوستون لري، کمخه هم هماغه څېزنوم ستایي، لکه: دړه توره ده، سړی روغ دی، نجلۍ ښکلې ده.....

اوږد ستاینوم زیاتره د کړ ول (قید) په توګه هم کارول کېږي لکه: هلک پلی راغی - اسمان په ستورو ښه ښکاري - بلوشه (ښکلې) بڼې زه کورته ډېر ځم....

## ۲-۱۸ د ستاینوم او ستایلي (صفت او موصوف) ګردانېدون:

په پښتو کې ستاینوم (لنډ یا اوږد) او ستایلی یا هغه څېزنوم چې ستایل کېږي، د نوم او ږون د دروګونو اړخ (نر، ښځه، ګڼ، یو) له پلوه سره زیات تړون لري، لکه: ړوند غل - ړنده غله، ړانده غله، ړندې غلې - د ړانده غله - د ړندې غلې - د ړندو غلو...

یا په نابشپړ ډول او یا ان تر لږه د یوه یا دوه اړخونو له پلوه، لکه: لوی غل - لویه غله - لوی غله - لویې غلې - د لوی غله - د لویې غلې، یا سپین غل - سپینه غله - سپین غله - سپینې غلې - د سپین غله - د سپینې غلې - د سپینو غلو....

په دې توګه ځینې ستاینومونه له خپلو اړوندو (مربوطو) څېزنومو (ستایلیو) سره بشپړ اوږون مومي او کله نه یې مومي، لکه پلار وروسته

لنښتلیك ( جدول ) کې :

| | |
|---|---|
| شین ښکلی | شنه ښکلي |
| د شنه ښکلي | د شنو ښکليو |
| شنه هندوانه | شنې هندوانې |
| د شنې هندوانې | د شنو هندوانو |

**۲-۱۲: یادښت:** له ځینو نومو سره د ستاینوم اوړونې (گرداني) سمون ځینې بېلوونې هم لري.

۱- په تړلیزو وول لنېه (ي) پای، پوړ ستاینومونه اوړون نه مومي، لکه: علمي مرکز، علمي منځی، د علمي منځیو ... د همدارنگه پایلې والا نوی پښتو ستاینومونه، لږ وډیری اوړون نه پاتېږي لکه: پرمختیایي، بشپړتیایي، بېلښتي ....

۲- که یو ځینونوم د خو ستاینومونو، تړلنومونو یا پوړ شمېرنومونو لپاره گډ وکارول شي، د گڼي له پلوه له هماغه وروستي ستاینوم، تړلنوم یا شمېرنوم سره سمون خوري، لکه:

- اتلسمه، نولسمه او شلمه پېړۍ (قرنهای هژدهم، نوزدهم، بیستم)
- (وروسته ساتل شوې او پرمخ تللې نړۍ) یوه نه ده.
- په ملګرو ملتونو کې (لوی او وړه هېوادونه) یو ارزښت نه لري (خپلې خپلې رایې بېلې بېلې ګڼل کېږي)؛
- دسرې او تودې سیمې کرنه یو راز نه ده.

## ۲-۴: دریم - شمېر نوم (عدد اسم):

شمېر نوم هم د ستاینوم غوندې په خپلواک ډول کومه نوموونه نه کوي بلکې په یو څیز نوم اړه لري، خو د ستاینوم غوندې یې څرګولی نه، بې څو مره والی او پوړ والی (مرتبه) ښيي، لکه: یو - دوه - درې.... یا لومړی، دویم - دریم....

## ۲-۱۳: د شمېر نوم او شمېرلي (عدد او معدود) ګردانې بڼه:

په پښتو کې شمېر نوم، لکه له نورو ستاینوم تر خپل اړوند څیز نوم (شمېرلي) د مخه راځي او له ورو پرورسره او یوون مومي، همغه داچې لومړی دوه (یو)، او (دوه) ورسره د نومېږي او بېرله مخې ګردانېږي او نور پورته ورسره یوازې د بېرله مخې، لکه په لاندې لښتلیک کې:

| | |
|---|---|
| یو غل | یوه غله |
| دیوه غله | دیوې غلې |

۵- اټکل شمېر (تخميني عدد): چې د يو څيز نوم (معدود) پر ځای غبرګ غبرګ څيز نومونه سنبيي، او يو هم نه ټاکي، لکه: يو دوه - يو نيم دوه درې - درې څلور - لس شل - شل دېرش - پنځوس شپېته... په دې توګه او ونډ څيز نومونه د دوه او شمېر نومونو ترمنځ اټکليدای او ميدای (انتخابېدای) شي. يالوړی يا دوېم او يا دهغو ترمنځ جوړ چون شمېر نومونه پر له پسې وي، لکه: يو دوه - دوه درې او يا په ټاکلي او عام منلي واټن سره لکه: اته لس يا لس شل مګر سنايي هېڅ يو پښتون دوه څلور - درې پنځه - څلور شپږ .... و نه وايي. البته (يو) له هر يو شمېر سره جوړه کېدای شي، خو هغه هم زيا تره د پېژند (حرف تعريف) په توګه چې اټکل و رسره په څرمه (ضمني)، د ول هم څرګند يږي.

## ۱۳-۲: څلورم - نومځري «ضمير»:

نومځری هغه وييی دی چې د يوه نوم سکارندويي کوي، د هغه پر ځای راځي او يا يې ملګرتيا کوي. او د هملته چې د ندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نيسي. له نورو نومونو (څيز نوم - ستاينوم - شمېرنوم) سره د نومځري توپير دا دی چې دا پر درې ګونو اړخو د نوږي - ګمنې او ښې) سربېره د ګړي (لومړي، دوېم او درېيم) له مخې هم اوړون مومي (د ښتيز ... ۱۴۲

۱۴-۲: د نومځرو ډولونه: نومځري د جوړې او چار له مخې پر درې ورو بستيو ډلو وېشل کېږي.

۱-۱۴-۲: ځانګړي نومځري (شخصي ضميرونه): چې دوه ډوله دي ۱- غښتلي ۲- کمزوري.

## الف- غښتلي (منفصل):

| گڼه / گړی | | یوگړی (مفرد) | | ډېرگړی (جمع) |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| | | آرپېر | اوښتی پېر | |
| ۱ | | زه | ما | موږ |
| ۲ | | ته | تا | تاسي |
| ۳ | نرینه | دی هغه | ده هغه | دوي هغوي |
| | ښځینه | دا هغه | دې هغې | |

## ب- کمزوري یا (متصل):

| گڼه / گړی | یوگړی | ډېرگړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | مي | مو |
| ۲ | دي | مو |
| ۳ | یي | یي |

۲-۲۲- نوملنو ځري (ملکي یا اضافي ضمیرونه): چې تړل (ملکیت) او اړوندي (متعلقیت) ښيي دغه نومځري هم پر غښتلیو او کمزوریو ویشل کیږي:

## الف- غښتلي (منفصل):

| ګڼه / وګړي | | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|---|
| ۱ | زما | | زموږ |
| ۲ | ستا | | ستاسي |
| ۳ | نرينه | دده | د دوي |
| | ښځينه | ددې | — |

## ب- کمزوري (متصل): ټټمت د ځانګړيو کمزورو هغو ونډي

| ګڼه / وګړي | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

### ۲-۲۴-۳: نښوونکي نومځري (اشاري ضميرونه):

هغه نومځري دي، چې وګړيو يا څيزونو ته نغوته (اشاره) کوي او دهغو د نومونو ځای نيسي او يا ورسره له ستاينوم ملګرتيا کوي.

نغوتنو ضمیري د لوړې، ګڼې، پیر او یوازې د ریم وګړي او واټن (فاصلې)، له مخې او پړون لري:

| وګړي | | یو وګړی | | ډېر وګړي | |
|---|---|---|---|---|---|
| | آرېیز | آرېیز | اوښتی ییز | آرېیز | اوښتی ییز |
| لنډ | دغه<br>دغه | | دغه<br>دغې | دغه | دغو |
| لر | هغه | | هغه | هغه | هغو |
| | هغه | | هغې | هغه | |
| لالر | هوغه | | هوغه | هوغه | هوغو |
| | هوغه | | هوغې | هوغه | |

۲-۶: پوښتنو ضمیري (استفهامي ضمیرونه): چې د یوې پوښتنې لپاره په کار لوېږي او د وګړي، څیز، محال، تون، ځرنګوالي او څومره والي له مخې د ول ډول دي، او پړون یې زیاتره یوازې د پېرلــه پلوه لرن و ډېرترسره کېږي:

۱- څوک (چا): چې د وګړي یا وګړو لپاره راځي چې څه یې کړي وي یا یې کوي یا یې څه شوي وي یا کېږي، او زیاتره د پوښتني غونډلو

(جملو) په سر کې راځي، لکه: څوک راغی، څوک راغله یا راغلل؟، څوک راغلې؟ څوک ځي؟ چا وویل؟ څوک وایي؟ څوک یې وواهه؟ څوک یې ووهله؟ څوک ووهل شو؟ ووهل شوه؟ څوک وهل کېږي؟ څوک داریك او نانیکونو ځري په توګه هم کارول کېږي او همدا رنګه د پېښند (حرف تعریف) کار هم ورکوي، لکه: څوک مې ولید، نن یو څوک راځي.

۲- کوم: د وګړي یا وګړو، څېز یا څېزونو لپاره راځي چې د نورو پوښتنو ځرو پر خلاف پر پېر سر بېره د نوږي له مخې هم اوړون لري، لکه په دې وروسته ځونډ لوکې:

کوم سړی راغی؟ کوم سړي وویل؟ د کوم سړي رنګ ژېړ دی؟
کومه ښځه راغله؟ کومې ښځې وویل؟ کومو ښځو- سړیو وویل؟
د کومو ښځو- سړیو رنګونه ژېړ وي؟

۳- کله: چې مهال پوښتي او هېڅ اوړون نلري، لکه: کله به راشې؟
۴- چېرې: چې ټون (ځای) پوښتي او هېڅ اوړون نلري، لکه: چېرې ځې؟
۵- څنګه: چې د یو وګړي یا څېز یا د یوې چار څرنګوالی پوښتي لکه: څنګه راغلې؟ څنګه راغی؟ څنګه راغله؟ څنګه نجلۍ دې ولیده؟ څنګه لیکی دې وېېره؟
۶- څه: چې زیاتره د یو څېز یا وګړي پېژندنه پوښتي او زیاتره په ډېر ګړي او نوږ نوم (جنس اسم) پورې اړه لري، بې له دې چې ځپله ښه وا ړوي، لکه: دا څه دی؟ دا څه دي؟ څه دې واورېدل؟

څه دي راوړل ؟ څه يې نرخ دی ؟ څه يې ارزښت دی؟

۷- څو : چې د وګړو يا څيزونو د شمېر پوښتنې، نو څکه تل د پرګړي دی، لکه : څو ځوانان راغلي ؟ څو هلکان راغلل ؟ څو ختونه دې وپېرل ؟ البته، څو، په بله مانا يو کمول (قيد) هم دی، لکه : څو ته راشې زه نه راځم ، چې څونې ليکوال يې په نا سم ډول د علتيه ويکې په توګه هم کاروي، لکه : درمل وخوره ، څو (چې) روغ شې.

۸- څومره : چې زيات ، د څيزونو او وګړو شمېر او د جنس (نوعي) او هم د رنګه د څرنګوالي او کيفيت ګڅه (مقدار) او درجه پوښتنې، لکه : څومره ختونه دې وپېرل؟ څومره شاګردان لوست وايي ؟، څومره غنم دې وپلورل ؟ څومره ښکلی دی ؟ څومره سبه دی ؟

۹- ولې : چې د يوه چار او پېښې لامل او توسن (عامل او سبب) پوښتنې، لکه : ولې راغلې ؟ ولې لوست نه وايې ؟ ولې خاندې ؟ (۱)

۲-۲۴-۵ : پلوي يا کړولي (سمتي يا قيدي) نوښتري :

هغه نوښتري دي چې له آره د يوه کړ او چار سمت او پلو څرګندوي خو په ترخ کې (په ضمني توګه) د ځانګړو نوښتروکار هم وړ کوي او هغه هم په بې چار (مفعولي) حالت کې.

نوښتري د ربې ښې لري او هره بڼه يې د يوه ګړي (يوګړي يا د برګړي) ښکارندويي کوي :

(۱) پښتو ژبه (۱۲۹) (څومره يا څونه ...) مرکب ضمير ونه بولي.

| ډیر گړي | یو ګړي | وګړی ګڼه |
|---|---|---|
| را | را | ۱ |
| در | در | ۲ |
| ور | ور | ۳ |

## ۲-۲۴-۶: ویپیکنو ګړي (اداتي ضمیرونه):

چې له ویپیکو (اداتو) څخه مخ ته راځي او دا هغه ادات دي چې سره په دری ګړوخای نیسي:

۱- پکې (دران): چې یو نوم په توګه پیرکې بنیي، لکه:

باغ وای د ګلو نو پکې ناست وای زه او ته

(خوشال)

۲- پسې (بسویش): چې نوم په توګه پیرکې بنیي، لکه:

د زعمرو ګولې خورم پسې

(ملنګ جان)

۳- و باندې (بالایش): چې یو نوم په توګه او هغه هم په پورتني (استعلایي) پیرکې بنیي، لکه:

ګل وای عوړ پېدکي باندې ملاست وای زه او ته (خوشال)

۴- **پرې** (بر آن): داهم (باندې) ته ورته دنده پرځای کوي، لکه:
ما پرې سر کېښود. پېسې مې پرې پور دي.

۵- **پې** (به آن): چې (په او پرې)، هم ویل کېږي، په یوه لوښي (الې) پېرکې دیوه نوم ځای نیسي اوله (پرې) سره یې په دې غونډ لوکې توپیر کولای شو.
زه په پښتو لیکنه کوم (من به پښتو می نویسم) زه پرې پښتو لیکنه کوم (من درباره پښتو می نویسم)

۶- **ترې** (از آن): چې یو نوم په وتون او تون او هغه هم په لېښتنې (استثنايي) پېرکې نیسي، لکه: ما ترې لاندې کېښود. کله کله له دغو ویکو مخرو سره یلوې یو ځرې هم مختا پې کېدای شي، لکه: (له ده، وردباندې) ... مګر د وریکې پرځای (ورکې) ویل کېږي، لکه له نوروا وسترېلو سره (ورلاندې، ورته، ورسره، ورڅخه ...).

۲-۲۴-۷ اړیکنو مخري (ارتباطي ضمیرونه):
چې په یوه غونډله کې د تېرې یا راتلونکې غونډلې له یو څخېز نوم یا نومځري سره راز راز اړیکې ټینګوي. په دې توګه په دې وروسته ډولو ویشل کېږي:

۱- **چې**: لکه: خوازکې چې د ببرک ورور دی، ننګرهار ته ولاړ،
ننګرهار یوسیمه ده چې توده هوا لري، زموږ هېواد په داسې ځای کې پروت دی چې سمندر ته لار نه لري، هغه کال د پروان وی چې د بروربنت ولري، زموږ هېواد دومره سکلی دی چې له سویس سره سیالي کوي، زه دومره کتابونه لرم چې له شمېره وتلي دي

۲- چې یې: یو ترښتی (ترکیبي)، یا دوه توکیزه (دوه جزیي) اریک نومځری دی چې هم په تیره عونه له کې له راغلي نوم سره اړیکي ښکوي او هم د هغه کړندوالی (فاعلیت)، کړیوالی (مفعولیت) او تولوالی — (ملکیت یا اضافت) څرګندوي، لکه: پلټیا یوه داسې سیمه ده چې ځنګلونه نوم لري، سنک خلکه بریالی شو چې یې زیار استلی و، ماشوم هله په ژړا شو چې یې مور ووهله پدی ورو ستي غبرګه عونه له (مضاعفه جمله) کې (چې یې) هم له (هله) سره اړیکي ښیي او هم د (ماشوم) کړیوالی (مفعولیت) او تولوالی (ملکیت) له مور سره.

۳- څوک چې: یو بل ترښتي اریک نومځری دی چې یوازې هغه وخت د څرمه عونه لې (فرعي جملې) په سر کې راځي چې تر آرې ونځه وړې دارې او څرې په ترتیب پورې تړلې نه ده بلکې د (تعریف) د ننده پر ځای کوي.

که د څیز، ځای یا شخص څرګندوی (معرف)، وي، بیا یې کار ول سم نه دی، لکه احمد راغی، څوک چې...

د اړیکنو نومځري بلکې د اړیک ویکي د ننده پر ځای کوي، نو خلکه وایو (څوک چې خوب کوي، نرګسۍ به زېږ وي) نه دا چې ووایو: (نرګسۍ به زېږ وي، څوک چې خوب کوي.) یا لکه — اجمل ختک چې وایي:

«ځئ هغه خوار وته جنت وګنو!
څوک چې له موره دو نځاپیدا یې»

ددې گرامري بڼه داسې سمبداى شي چې دويمه (څرمه غونډله) برلومړۍ (اړى غونډلې) دمخه کړو: «څوك چې له مورو دوزخيان پيدا دي، ځئ هغه خوارو ته جنت وګټو.» او يا داچې څوك ترې وغوړځوو. په دې ډول دڅلورو ژبو، لکه اردو يا يې هغو دناسم غونډلو بېلګې دادي:

غرزى كندهارته ولاړ، څوك چې هلته خپلوان ګوري، پښتنګ په لومړۍ ګڼه برياليشو، چاچې زيار ايستلى و....

هدار از چيرې چې، كله چې، كوم چې، څه چې، څوچې، څومره چې؛ .... درواخله، لکه په دې غونډلو کې:

غرزى كندهارته ولاړ چېرې چې خپلوان ګوري؛ زه هيواد ته هغه وخت راستون شوم كله چې پر ه وچوبه وه، مايولېكاني واخيست كوم چې سبه كاركوي؛ كار سبه دى، څه چې نيكمرغي راوړي؛ پنځه كتابه مې واخيستل څوچې زما په كار وو؛ يا پنځه كتابه مې واخيستل چې زما په كار وو؛ دوښمنه غنم مې دومره راوړل، څومره چې مې پېر لاى شول.

سمې بڼې يې: غرزى كندهارته ولاړ چې خپلوان وګوري، زه هيوادته هغه وخت راستون شوم چې پره وچوبه وه، مايولېكاني واخيست چې سبه كاركوي، كار سبه دى چې نيكمرغي راوړي؛ پنځه كتابه مې واخيستل چې زما په كار وو....

په دې ډول بېښتو له آر و هدار يو (چې)، هم د اړيكو ييكي په توګه كار وي اوهم يې د اړيكنو مخري په توګه او ديوډ تنيو پوښتنو مخرو (څوك، كله، چېرى ....) ملګري كول ورسره بې ځايه دي.

په تېره په آره غونډله او په داسې څرمه کې چې تړاړی ور وسته راځي،
البته څوله، کله، چېرې او نور پوښتنو مځري چې له (چې) سره ملګري
کېږي یو ځای دا ربېکو بېکو (ارتباطي اداتو) چا رڅرګندوي، نه دا پېک
نومځرو ، لکه: «څمڅي کړې هغه به ربېي»؛ څنګه غږ هسې کړ بوي؛
هله به خبر شې چې تا روجې له ورشي؛ چېرې دې سبه، هلته دې خپه؛
څومره چې ګوره اچوي، هغومره خوږ پړ بوي....

### ۲-۴-۱-۸ غبرګون نومځري یا انعکاسي ضمیرونه؛

هغه نومځري دي چې د چا رهم کړ نداوسې اقهم کړي. په پښتو کې
دا راز نومځري له نومونو یا ځانګړ نومځرو سره «ځان» په ملګرتیا
کولو لاسته راځي چې زیاتره په هډې یوه یو ګړې (مفرده) بڼه هر
ځای را تلای شي، لکه: ځلمي ځان ژوبل کړ؛ ځلمي او زمري
ځانونه ژوبل کړل؛ هغه ځان ژوبل کړ، هغوی ځانونه ژوبل
کړل. د پوره څرګندتیا لپاره له «ځان» سره «خپل» هم ملتیا کوي، لکه:
هغوی خپل ځان وژغوره.

### ۲-۴-۲-۹ ناټاکلي نومځري (ابهامي ضمیرونه)؛

چې د یو ناجوت (نامعین) وګړي یا څیز لپاره راځي او د بېلابېلو ډلو
له مخې په لاندې ډولو دي:

۱- هر: چې زیاتره په یوګړي اړه لري او د لوڼې او پر له مخې لړزو
د بڼا او پوون لري، لکه: هر ځلمی، هره پېغله، هر خت (کمیس)،
هره ګنډه (کرته)، هري پېغلې...

په اوښتي ډېرگړي کې، لکه: هرو ښځو شاگردانو ته یو لیکی وړښید.
یا زه په هرو دوو اوښتونکي سینماته ځم.

۲- بل: یوازې د شمېرېدونکي یوگړي نوم پرځای راځي او یا ورسره د نغوتنو ځړي عونډې ملگرتیا کوي، لکه: بل ځلمی، بله پېغله، د بل ځلمي، د بلې پېغلې....

۳- نور: یوازې د ډېرگړي یا نوربړ نوم (جنس اسم) ښکارندوي او ملگرتیا کوي او ځه ناځه او اوړون لري، لکه: نور هلکان، نورې نجونې، نور غنم، نوره وسپنه، نوره خاوره، نورې اوبه، د نورو هلکانو، د نورو پېغلو، د نورو غنمو، د نورې وسپنې، د نورې خاورې، د نورو خاورو، د نورو اوبو....

٤- ټول: د نور عونډې په ډېرگړي او نغنوم اړه لري او له لوېدیزې پښتو پرته هماغسې اوړون مومي، لکه: ټول هلکان، ټولې نجونې، ټول تیل، ټوله خاوره، ټولې خاورې، ټولو هلکانو، د ټولو هلکانو، د ټولو نجونو، ټولو نجونو، د ټولو تیلو، د ټولې خاورې، د ټولو خاورو

٥- واړه: د ټول همانیز دی خو یوازې د نوربړ او ډېرله مخې اوړون او اوښتون مومي، لکه: واړه هلکان، واړې نجونې، واړو هلکانو، واړو نجونو، واړه خاوره، واړې خاورې، د واړې خاورې، د واړو خاورو....

٦- دواړه: تل دوگړی (تثنیه) دی او د دواړه عونډې په نوربړ او ډېراړه لري، لکه: دواړه هلکان، دواړې نجونې، د دواړو هلکانو، دواړو نجونو...

۷- څه: پر پوښتنو نومځري سربېره یو ناوړېدوني ناټاکلی نومځری هم
دی، لکه: څه مې ولیدل، څه نشته، چې نه کارېږي لته څه کار!
«څه» له نورو ناټاکلو نومځرو او ځینو ستاینومونو سره ترښتي ناټاکلي
نومځري جوړوي، لکه: بل څه، نور څه، هرڅه، هېڅ څه، لږ څه،
ډېر څه؛ همدارنګه له پېژند (یو سره)، لکه: یوڅه.
۸- څو: هم پر پوښتنو نومځري سربېره یو ناوړېدوني ناټاکلی نومځری
دی، لکه: څو پیسې مې په کار دي، څو میاشتې په کار دي چې
زه کتاب ولیکم. «څو»، له پېژند او ځینو ناټاکلو نومځرو سره ترښتي
ناټاکلي نومځري جوړوي، لکه: یوڅو، هرڅو، هیڅو (هېڅ څو).
۹- ځیني: د ډېر ګړي او نورو نوم سبکارندوي کوي، لکه:
ځیني شاګردان، ځینو شاګردانو، ځیني شاګرداني....
۱۰- هېڅ: د یو ناټاکلي څیز یا څیزونو نشتوالی ښیي او کوم اړوند
نلري، لکه: هیڅ هلک، هیڅ هلکان، هیڅ نجلۍ، هیڅ نجونې،
هیڅ هلکانو، هیڅ نجونو، هیڅ غنم، هیڅ غنو.... هیڅ له پېژند (یو)
او زیاترو ناټاکلو نومځرو سره د لومړي توک په توګه ترښتي (ترکیبي)
ناټاکلي نومځري منځ ته راوړي، لکه: هیڅ یو، هیڅه، هیڅو،
هیڅو مره، هیڅ کوم، هیڅ بل، هیڅ نور، هیڅوک، هیڅکله، هیڅ چېرې
(هیڅ چېرې)، هیڅ دواړه. یا په درې توکیزه ترنګ (درېبجزي ترکیب)
کې، لکه: هیڅ کوم یو، هیڅ کوم څوک یا په څلور توکیز ترنګ کې، لکه: هیڅ کوم
یو نیم، هیڅ کوم یو بل....

۱۱- ځوك : هم پر پوښتنو ځري او پر يكنو ځري سربېره يو ناټيك
نو ځري هم دى چې هم د ځينو نومو سګارند وي كوي او هم د پېژند
(ارټيكل)، لكه: نن ځوك راغې، ځوك يو كار كوي، ځوك بل، چا
مې ليكاني واخيست، ځوك سړى را روان دى، ځوك ښځه مې
وليده. په نورو پېرو توكې، لكه: چا ته مې ليكى وركړى دى.
خو اوس مې هېر دى، له چا نه مې ليكى واخيست يا مې هېر شو،
خپل كار په چا نه كوم، زلمى له چا سره پر يوه لاره نه ځي، زه ځوك
نه وهم، پر چا كار نه لرم، ځوك چې بل چا ته كوهى كيني، پخپله پكې
لوېږي، له ما سره د چا څه كار دى، په شپه كې چا ته ورتګ ښه
نه دى....

له پېژند ليو او ځينو نورو ناټيك نو ځرو سره هم ترښتي تركيبي
ناټيك نو ځري جوړ وي، لكه: يو ځوك، هر ځوك، هيڅوك،
بل ځوك، نور ځوك، ځوك سړى، كوم ځوك، كوم چا، يا لكه
پښتنو يان چې وايي : چا ظالم مې ژبه پرې كړه.

۱۲- سړى : پر ځينو نومو او ستاينومو سربېره يو ناټيك نو ځرى هم
او تر بلن پېره پورې په ټولو پېر وكې راځي، لكه: سړى دې
هغه كوي چې ځوك ترې ونه خوربېږي، بايد د سړي له لاسه
داسې كار ونه شي چې وروسته پرې پښېمان شي، دلته د سړي
هره هيله نه پر ځاى كېږي، سړى دې سړي ته ګوري او بيا دې،
ور سره هماغسې چلند كوي، لومړى دې سړى سړي ته پورته

وركوي او كه وريي كړه نو بيا دي ترې ژر نه غواړي، و سړيه ستا له چا سره څه كار دى؟ له پېژندي او څيني نور و نا ټيك نوم ځرو سره تړنګونه (تركيبونه) هم جوړوي، لكه: يو سړى دې خوا ته راد رومي، يو سړي ته راز ويل په كار نه دي، هر سړى، (هو هر سړى پيدا دى خپل خپل كار لره كنه - خوشال)، هيڅ سړى نه سكاري، سړى سړى سم كار ته نه پر بن دي؛ له خوازك پرته بل سړى مې ونه ليد، هڅوك زمونږ خوا ته راڅي، كوم سړى چې د سړي نه خوښيږي څه په كار چې پرمخه ورڅي، څه سړي غونډې راد رومي؛ يو نيم سړى خپل ژوند ته پام نلري، كوم نيم سړى مې ونه ليد، كوم يو نيم سړى رانغي....

پلاني او بيستاني هم له عربي او دري (فلان - بستان) څخه پښتو شوي نا ټيك نوم ځري سكاري....

۱۰۶-۱۴۲: ګډې تولنوم ځري (اشتراكي ضميرونه):

پښتو دري غونډي له خپل، څخه پر نور و پازو سر بېره ديو تولنوم ځري (ملكي ضمير) كار هم اخلي او دا چې د دروا پو و ګرولپاره راڅي، نو ګډ تولنوم ځري (مشترك ملكي ضمير) بلل كيږي عونږه دي، لكه: نشيون خپله ونه پيايي، رمه خپل شپانه وپېژوله، هر څوك په خپل كار كي خوښ دي، څيني خلك خپل ځان نه پېژني، څلمي په خپله خونه كي كار كوي، خوازك خپل كور ته نا وخته څي، خوازك له خپل ورور سره سبار ته ولاړ؛ برېي له خپلو ملګرو څخه منسه وكړه؛ بر يالي له خپلي خوښي څخه نه اوړي، څينيځله ګناه نه يو هيږي.

خپل د پېژند او ناپېیاک ستاینوم په توګه هم کارول کېږي، لکه: خپله لاسه، ګله لاسه! چې بیا هم پکې د ټول (ملکیت) جاج (مفهوم) پروت دی. په تکراري ډول لکه په دغني بیت کې:

(هو، هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه). «خپل»، د نورې او پېژندنې ښیپراو ړون لري، خو دګني له مخې نه، له «ځان»، سره غبرګون نومځری جوړوي، لکه: خپل ځان یې ژوبل کړ. او له دې سره همغه تړلوالي او پېژندوالي د ندې هم څرګند وي.

## ۱۱-۲۴- ټول-ځانګړي نومځري (شخصي ملکي ضمیرونه):

چې د غښتلیو تړلو نومځرو او غښتلیو ځانګړو یا نخو نتومځرو په ځای کېږي او سره جوړېږي او په دې توګه په یوه وخت د دوو دوو نومځرو د نده پرځای کوي، له همدغه امله دوه اړخیزه او ړون لري او همغه هم د نورې ګنې، پېراو وګړي له مخې چې ځانګړي ورسره یوازې په دریم وګړي اړه لري لکه:

۱- نقل نومځري + يوګړي ځانګړنومځري :

| وګړی ګڼه | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زما دی، هغه (ده، هغه)<br>زما دا، هغه (دې- هغې) | زموږ دی- هغه (ده- هغه)<br>زموږ دا- هغه (دې- هغې) |
| ۲ | ستا دی، هغه (ده،هغه)<br>ستا دا، هغه (دې، هغې) | ستاسې دی- هغه (ده- هغه)<br>ستا دا، هغه (دې، هغې) |
| ۳ | د ده دی، هغه (ده،هغه)<br>د هغه دی- هغه (ده،هغه)<br>د دې دی- هغه (ده،هغه)<br>د دې هغه- هغه (ده، هغې) | د دوی دی- هغه (ده، هغه<br>د دوی دا- هغه (دې، هغې) |

۲- نقل نومځري + ډېرګړي ځانګړنومځري

| وګړی ګڼه | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوی، هغوی<br>ستا دوی ، هغوی | زموږ دوی- هغوی<br>ستاسې دوی- هغوی<br>د دوی، دوی- هغوی |
| ۲ | د ده دوی، هغوی | |
| ۳ | د هغه دوی، هغوی<br>د دې دوی، هغوی<br>د هغې دوی، هغوی | |

## ۳- تولنومځري + لنډ یوګړي نخوتنومځري:

| ګړي / ګڼه | یوګړی | ډېرګړی |
| --- | --- | --- |
| | زما دغه، دغه، دغې | زموږ، دغه، دغه، دغې |
| ۱ | ستا دغه، دغه، دغې | ساسې دغه، دغه، دغې |
| ۲ | د ده دغه، دغه، دغې | |
| | د هغه دغه، دغه، دغې | |
| ۳ | د دې دغه، دغه، دغې | ددوی دغه، دغه، دغې |
| | د هغې دغه، دغه، دغې | |

## ٤- لوی نومځري + لرې یوګړي نخوتنومځري:

| ګړي / ګڼه | یوګړی | ډېرګړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | زما هغه، هغه، هغې | زموږ هغه، هغه، هغې |
| ۲ | ستا هغه، هغه، هغې | ستاسې هغه، هغه، هغې |
| ۳ | د ده هغه، هغه، هغې | ددوی هغه، هغه، هغې |
| | د هغه هغه، هغه، هغې، | |
| | د دې هغه، هغه، هغې | |
| | د هغې هغه، هغه، هغې | |

۵- تولنومځري + لا ليوګړي نغوتنومځري :

| ډېر ګړي | يو ګړی | وګړي ګڼه |
|---|---|---|
| زموږ هوغه، هوغه، هوغې | زما هوغه، هوغه، هوغې | ۱ |
| ستاسې هوغه، هوغه، هوغې | ستا هوغه، هوغه، هوغې | ۲ |
| | د ده = = =<br>د هغه = = =<br>د دې = = =<br>د هغې = = = | ۳ |

او هم داسې د دوېيم توك ډېر ګړي هم او ړون موږي، دا دی د تول ځانګړنومځرو د پوره څرګندتيالپاره څو بېلګې نځونلي راجلي وړاندي کوو:

ایمل: زما زوی ناروغ دی.
خوشال: زما هوغه هم ناروغ دی.
ایمل: زما زوی ښوونځي ته ځي.
خوشال: زما هلکا کوچنی دی.
ایمل: زما وراره ښوونځي دوايه.
خوشال: زما هوغه هم دوايه.
ایمل: زما ماما آس واخیست.
خوشال: زما هوغه هم واخیست.
ایمل: زما ورور ځلمي ته یو لیکی ورکړ.
خوشال: زما ده هم هوغه ته یو لیکی ورکړ - زما هوغه هم هوغه ته یو لیکی ورکړ.

ایمل: زما لیکی ځلمي واخیست.
خوشال: زما د ازمري واخیست، زما هغه زمري واخیست.
زما دا هم ده واخیست، زما هغه هم هغه واخیست.
ایمل: زما ورځنی ګټه سل افغانی ده.
خوشال: زما دا دوه سوه افغانۍ ده.
ایمل: د ده کور لرې دی.
خوشال: د ده دا نژدې دی، د ده هغه هم لرې دی.
ایمل: د هغه مور ناروغه ده.
خوشال: د هغه هغه هم ناروغه ده. د هغې هغه هم ناروغه ده.
ایمل: د دې ورور زما ټولګیوال دی.
خوشال: ستا ګې بیا زما ټولګیوال دی.
ایمل: زما مور و پلار مړه دي.
خوشال: ستا هغه ژوندي دي.
ایمل: زما مور و پلار کوم رسمي کار نلري.
خوشال: زما هغوی هم کار نه کاوه (زما دوی هم کار نه کاوه).
ایمل: زموږ کلی له ښاره لرې دی.
خوشال: زموږ دا هم له ښاره لرې دی.
ایمل: زموږ هغه دومره لوی نه دی.
خوشال: زموږ دا ستاسي له هغه څخه په بر لوی دی.

ایمل: د دوېم ټولګي شاګردانو کتابونه نه دي اخیستي.

خوشال: د لومړي ټولګي هغوی هم نه دي اخیستي.

ایمل: د درېم ټولګي شاګردانو خپل کتابونه بېرته ورکړي.

خوشال: د څلورم ټولګي هغوی خپل هغه بېرته نه دي ورکړي.

## ۲-۲۵: ګړاوونه

۱- ګړپوهه له څه نه غږېږي؟
۲- ګړپوهه لومړی پر کومو دوو څانګو وېشل کېږي؟
۳- د اورېدلو ګړ و لو څانګه کومې برخې رااخلي؟
۴- نوم ګړپوهه له څه نه غږېږي؟
۵- د نوم او پړون (اسمي ګړیان)، اړخونه کوم دي؟
۶- نومځری (ضمیر) د څو اړخو له مخې او پړون موږي؟
۷- نوم څه ته وايي او کومې څلور دلې رااخلي؟
۸- څېز نوم او ستاینوم څه توپیر سره لري؟
۹- نومځری څه ته وايي او په پښتو کې پر څو ډلو وېشل کېږي.
۱۰- په لاندې بېتونو کې هر ډول نوم نښه کړئ او ونوموئ؟

بارلګ له ماښخه یو لیکي وغوښت، خو ما ترې وژغوره، څکه بتو لګي راښخه بیل دی، په شوونځي کې د ده داریم کال دی او زما دوییم له یوه بتو لګیوال سره یې چال چلند سم نه دی. دی خو راجو غالګر دی او دیو بل خبریال. دیوه خبره یوه ته وهېچي او دبل بل ته. کله یې له یوه سره اخ و ډب ګډې او کله یې له بل سره. څوک ترې ارام نه دي، له هرچا سره

چې يو خل کښېني بيا يې ورته و يل او بدوالي.
دغله په عزه کې ځاى نشته . پر بلا بوتي سپي هم ميتازې نه کوي.
هر سړی ته په کار دي چې خپل کار ته پام ولري او د بل په
کار کې ځان گډ نه کړي . وېښياران وايي:

دخوارې کوندې زويه - خپلې روټې ژويه!

۱۱- نا وښتوني نوموته کوم دي؟
۱۲- دنرينه نومونو پايلې کومې دي؟
۱۳- ښځينه نومونه په څه پېژنئ؟
۱۴- آن، يان، گان او اني، گاني سره څه اړيکې لري؟
۱۵- د تندرور، يور، لور، نږور، د برگرمې و بيناست!
۱۶- اوښتوني نومونه کوم نومونو ته ويل کيږي، څنگه او کله
او ښتنه مومي؟
۱۷- (نما دا) يا (نما څخه) په کوم نومځرو کې راځي؟
۱۸- نا تړيك نومځري را وپيژنئ او ويليكئ!
۱۹- نخوتنو نومځري څنگه او روڼ (گردان) مومي؟
۲۰- (را- در- ور) څه راز نومځري دي او په کوم و گړو
اړه لري؟

## ۲-۲۶: د کړ ګړ پوهه یا د فعل صرف (Conjugation)

په کړ ګړ پوهه کې د کړ له راز راز د ولونو او وړونو ګردانونو څخه چاری کیږي.

## ۲-۲۷: کړ:
څه وی (لغت) دی چې د زماني په چوکاټ کې د یو څه پېښېدنه څرګند وي.

داچې د کړ جاج (مفهوم) بې د زماني له ملګرتیا نه پوهېدل کېږي، نو ځکه کړ ته مهال وی (د زماني لغت) هم وایي.

## ۲-۲۸: کړنوموونکی یا کړنومی:
په پښتو کې یو کړ په مصدر (نابای)، نومول کېږي، له همدې کبله مصدر ته کړ نوموونکی وایو.(۱) په عربي کې یو کړ د خپل تېرمهال (ماضي)، د دریم وګړي په یوګړي څېل (مفرده صیغه) یاد یږ ي، لکه: ضرب، نصر

---

(۱) پالوال، پښتو نوی مصدر ۵ - ۱۰ مخ.

پخوا په الماني او پارسي کې کړنوموونکي پخپله د کړ ريښه وه، خو اوس په دغو دواړو ژبو کې د پښتو غوندې يو کړ د خپل مصدر په نامه نومول کيږي لکه: توتن، کردن، کول...

**۲-۴۹: د مصدر جوړښت او ډولونه:**

په پښتو کې يو مصدر په يوه يوګړيز (يومورفيمين) روستاړي (ل) پېژندل کيږي، دغه روستاړی په کړولی (فعلي ريښې) پورې سيده نښلي، په دې آړ (شرط) چې کړ ساده يا په بله وينا يوګړيز يا يو مورفيمي وي او که بېلښتي او ترښتي (اشتقاقي او ترکيبي) وي، نو مصدري روستاړی (ل) په مونډ (تنې) پورې نښلي. سيده په کړولي پورې لکه: مونډل، وهل، خوړل. په مونډ پورې لکه: غوړځول، اوبول، کښېناستل، پرېوتل، يوځای کول، لاس ته راوستل، تود تودکيدل، ننغ ننغ کيدل، پخلاکيدل يا کول...

د مصدر د نده هدا ده چې يو کړ و نوموي، کټ مټ، لکه: ونه، ډبره، سړی، کندهار... دا چې مصدر د يو څه کړنه او پېښېدنه څرګند وي، نو د کړنې او پېښېدنې نوم دی، نه پخپله کړ، ځکه په زماني پورې اړه نلري. دا چې دو ديز (عنعنی) ژبپوهانو مصدر له خپلې وييزې (لغوي) مانا سره سم د کړ د بېلابېلو بڼو (زېږنده) او يا بنسټ بللی دی، يو بې سرو بوله خبره ده(۱۱۵).

د کړ بنسټ هماغه کړولی (فعلي ريښه) يا کړ مونډ (فعلي تنه) ده چې پخپله مصدر ترې د (ل) په ورنښلولو جوړيږي.

---

(۱۱۵) ... چې په دغه باب ... پښتو ګرامر (پښتو ټولنه، ۱۳۳۷) او د پښتو مصدرونو ... (پښتو ټولنه، ۱۳۴۴).

نه مصدر په پښتیاسره د تېرلو فعلي بیلوتو او بنو بنسټ او زېرنده
ی، نو باید په هره بڼه کې روغ رمټ پاتېدای، حال دا چې موږ گورو
چې یوازې کړولی (فعلي ریښه) یا مونږ (فعلي تنه) په هره بڼه کې
یل شتوالی ساتلای شي، لکه: «وهـ» په «وهم»، وهو، وهې، وهي،
وهئ یا وواهه، واهه، وهلی دی او داسې نورو کې له دې کبله
مصدر پر ځای «کړ نومی» یا «کړ نوموونکی» ویل په کار دي، ځکه چې
غه یې د نوم ده. «نا بای» په نامه یې یادول دلاتین (infinitive)
ونه ده، هم دومره ناوړه نه ایسي، ځکه چې یو نا بای او ناټاکلي
ره او پېښېد نه څرگندوي او نوموي، نه په وگړي اړه لري، نه په
ماني او داسې نورو گردانو اړخونو.

نه د مصدر نوموونه په یو کړ نوم وا پوو، بنا یې له نورو د بېرو کړ نومونو
سره یې گډ وي راشي، لکه: خوړنه، خوړانه، خوړنگ، خوړوونکی، خوړلی،
خوړ، خوړنده، خوړندی، خوړی، خوړکه او داسې نور چې د خوړل
وندي لنځوړ او خوړ» ولې (ریښې) څخه جوړ شوي دي.

د پښتو مصدر د یوه نوم په توگه تل د پرگړي ناریینه دی
یوازې د بېر (حالت)، له مخې اړوون موي، لکه:
بېرو لوستلو ستومان کړم، یا د عبدالقادر ختک په لاندې شعر کې:

مه شه خوښ د پادشاهۍ پر تخت (ختلو)
همیشه یې غم کوه د (پرېوتلو)

## ۲-۳: د کړ اوړوني توکونه او اړخونه:

یو اوښتونی (گردان شوی) کړ تر ډېر لسو توکونو پورې
په جولین او ښکاره ډول یا ناښکاره ډول غځېدلي ځان کې ځایولای شي،
چې څه ناڅه د هماغوله مخې را نږدې کېږي او اوښتون مومي او ځغه بېږنده کېږي:

۲-۳-۱: **محکړ**: چې د کړ بېښېړونکي او پلونا کونکي توک (جزء) گڼل
کېږي، لکه: کښېني، په "کښېناستل" او "کښېني وتل" کې او "پرې" په "پرېوتل"
او پرېوتل یا پرېمنځل کې.

۲-۳-۲: **ولاړه یا ریښه**: چې د کړ ریښتینی بنسټ دی، لکه خوړ یا خوړ
په خوړم، خوړو، خوړې .... او وخوړ، خوړلای، خوړلای او
داسې نورو کې.

ولاړه پر دوه ډوله ده: یوه لومړۍ یا اوسمهال (حال) ولاړه؛
لکه: خوړ، اغوند. بله دویمه یا تېرمهال (ماضي) ولاړه، لکه
خوړ، اغوست. دواړه ولاړې په گډه د یوازني اوښتون (گردان)
بشپړ وي. او سترمهال کړ (مستقبل فعل) کومه جلا ولاړه نه لري، بلکې
هماغه اوسمهال ولاړه یا لومړۍ ولاړه ورسره شریکه ده. دویمه
ولاړه پر دې سربېره چې گرد تېرمهال کړونه ترې جوړېږي د
اوسمهال او سترمهال بېچاره کړونه (مجهول افعال) هم ترې جوړېږي.
کړنومونه بیا له دواړو ولاړو څخه پر منځ ته راځي.

د کړنوونکي یا مصدر رجوع بنسټ زیاتره له تېرمهال ولې څخه
د و د لري، لکه: خوړل، لیدل، تلل. د لته لیدل له «لید»، ولې
څخه جوړ شوی چې د ویمه یا تېرمهال وله بلل کېږي او لومړی
یا اوسمهال وله یې (وین)، ده. د دغو ولیو یا رسي انځولونه، دید،
او وین دي.

۲-۳-۲: مونل: چې د محکم یا وله او وګړیزي پایلې (شخصي ختاتې)
ترې څخه وړل کوم توک په یوځای کولو مخ ته راځي، په بله وینا که له یوه
تېرمهال ګردان شوي کړ څخه وګړیزه پایله یا بله کومه پایله وغورځول
شي یا پاتې برخه یې مونږ بلل کېږي. په دې توګه مونږ زیاتره تېر-
مهال کړ بنسټ جوړوي او په اوسمهال کې په ساده ډول له
صفر یا وله سره برابر دی، لکه: «کښېناست»، په «کښېناستم» یا
کښېناستو، او زېږېد په زېږ یدم، زېږېدو، وزېږېدم،
وزېږېدو، وزېږېدای، یا «اغوست» په اغوستم، اغوسته، واغوست
... کې. د اوسمهال مونږ، لکه: (خمل) په خملوم، خملو... کې.
که په ځینو ګډوډونو کې، کښېناستلم، کښېناستلو، زېږېدلم،
زېږېدلو، وزېږېدلو او داسې نور ووېل کېږي، نو مونږ
یې بیا «کښېناستل» او «زېږېدل» راځي. البته په ځینو ګډوډونو
کې دغه رازدل، د مونږ ضروري توک ګڼل کېږي او غورځول
یې ماینز نیمګړ تیار اولي، لکه: ما ویاله وکینله، مایکښه و لوستله،
ماوږمه ووژله ... مګر وکینده او ولوسته ویل شي، مونږ ونه

يې همغه «کینډ» او «لوست» راځي.

۲-۳-۴: **کړ تړ**: چې دیا تړه دیو خپلواك اواز په بڼه د مونږ او ویږې پاېلې ترمنځ کله کله پیښېږي، لکه: «زوړکی» په کښېناستم او پرېوتم کې. مونږ پر محکم او ولیږه سر بېره د څېل (۶)، لېږد (۷)، مهال (۸)، او لېږندچار (۱۲) لوکونه او چارونه هم راخلي.

۲-۳-۵: **دود**: چې د کړ د ښکند ولو د ول ښيي، لکه: خبري او ناخبري (غوښتني، پوښتني، هيښني، امري، ارماني، گوماني ښکاري يا تاکيدي شرطي) هميشني، روښدني يا اعتيادي، لکه: ما ډوډۍ وخوړه. وخوړلې خوړه او داسې نور.

۲-۳-۶: **څېل**: چې د کړ (مسند) او کړند یا کړي (مسند اليه) تاکنه کوي. په دې مانا چې کړ چاروال (معلوم) دی که بېچار (مجهول) یا ښخوال (انعکاسي) چاروال، لکه: بېرك زمری وواهه، زمرك وهل کېږي، زمرك ځان وهي. په لومړۍ غونډله (جمله) کې کړ په کړند (بېرك) استنادکوي، په دوهمه کې په کړي (زمرك) او په درېیمه کې هم په کړند او هم په کړي چې دواړه همغه یو وگړی (زمرك) دی. څېل په جوليز او ناجوليز دوول د مونږ یو توك دی.

۲-۳-۷: **لېږد**: په دې مانا چې کړ لېږند (متعدي) دی که نالېږند (لازمي) لکه سمند روان ئ او سمند راغی. لېږد په جوليز (يا نا لېږد غير شکلي) دوول د مونږ یوه برخه جوړوي.

۲-۳-۸: **مهال**: چې د کړ مهالي یا زماني اړیکې (ارتباط) څرګندوي،
په دې مانا چې کړ په کوم مهال کې پېښ شوی دی، لکه: ځوکړی
ولاړ، ځوکړی ځي، ځوکړی به ولاړ شي.

د پښتو کړ مهالونه په ټولیز (عمومي) ډول درې دي:

۱- **تېر مهال**: چې په بشپړ، نابشپړ، لنډ او لرو ښکل کېږي.

۲- **اوسمهال**: چې په بشپړ، نابشپړ، همېشني، روږدي و پېښنه مړي.

۳- **اوسترمهال**: چې دا هم دوه ډوله دی بشپړ او نابشپړ.

د تېر مهال توکی په مونږ کې راځي، لکه: په وډ ډېدم او ورډېدلم کې
(د) یا (د-ل) او په وډ ډېدم یا وډ ډېږ وکې (ږ).

۲-۳۰-۹: **وګړی یا شخص**: چې کړ ند یا کړی لومړی وګړی (متکلم)
دی، دویم وګړی (مخاطب) یا دریم وګړی (غایب) دی. لومړي
وګړی (زه- مونږ) دویم وګړی (ته، تاسي) او دریم وګړی
(دی- دوي). د وګړي نښه چې وګړیزه پایله بلل کېږي د
کړ وروستۍ برخه جوړوي، لکه: (م) او (و) په (راغلم) او (راغلو) کې.

۲-۳۰-۱۰: **لوږنی یا جنس**:
چې وګړی نرینه دی که ښځینه. په پښتو کې یوازې د دریمي
ولحه په اوړون کې دغه توپیر کېږي، لکه: شینکۍ راغلـه،
ژړني راغی؛ چې دلته (ه) او (ی)، لوږیز توکونه دي؛ پایي
توګه لوږیز توک له وګړنیز پایلي سره ګډ او پای ته راځي.

## ۲-۳۰-۱۱: ګڼه یا عدد (اِفراد و جمع):

نحوي وګړي یو ګړی (مفرد) دی که ډېر ګړي (جمع). یو ګړی،
لکه: هلك راغی، ډېر ګړي، لکه: هلکان راغلل.
ګڼه یوازې په لومړي او دویم وګړي کې توپیر ښيي نه په دریم کې،
لکه: هلك ځي، هلکان ځي.

## ۲-۳۰-۱۲: لېږندچار یا صناعیت (کوزاتیف):

د کړ هغه بڼه یا توك دی چې په مونږ کې راځي او یو لېږند
کړ دویم ځلي لېږند (متعدي) کوي، لکه: د پارسي په خوراندن
یا خوابانیدن کې (ان)، پښتو سمدلاسه د ننګرهار ګرد ود او خوشال
خټك په استناد یوازې دوه لېږندچار کړونه لري، لکه: خوړل
(خوراندن) او وییل (ګویاندن). په نورو کړونو کې دغه راز-
څرګند و نه یوازې د ویکو (اداتو) په وسیله ترسره کېږي، لکه:
ما پر ځلمي خپله خبره و منله (من بر ځلمي سخن خود را قبولاندم). په دې توګه
یو لېږندچار کې دوه کړند (فاعله) او دوه کړیه لري،
لکه: په پورتنۍ بېلګه کې «ما» او «ځلمي» کړندونه او «خبره»
کړې، ده او په یو حال کې بیا «ځلمي» او «خبره» دواړه کړې دي.
ځینې حکمي لېږند کړونه نه لري او ویکو هم د لېږندچار دنده
پر ځای کوي، لکه: ما وژړوله، ما وخندوله او داسې
نور. یا داسې هم ویل کېږي، ځلمي د وړخانې په خپرولو سملاسي
پرې وکړې.

## ۳۰-۱۳: دنفي یا نهي توك، «نه» یا «مه»:

چې زیاتره د منکر یا ترسنتي اوبیلبنتي توك ترمنځ راځي، لکه: کېږي نه ناست یانه څېږ، وانه خیست، را نغی، مه خوره . . .

## ۳۰-۱٤: کماوروني (حکمي متعدي): لکه:

ویل، نغل، خندل، ژړل، کتل، لبنل؛ ماوویل، وبلیې دي، وبلیې[1]

## ۲: کـُراو (تمرین):

| ر | پاڅ | ـيد | ـ زورکی | م |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱ | ۲ | ۶-۷-۸-۱۲ | ۴ | ۵-۹-۱۱ |
| ۳ | | | | |

**یادونه:** لوړنۍ (۱۰) په یوه بېلګه (راپاڅېدل) کې موموچې له ۹-۱۰-۱۱ سره یودن لري خوار ګه دنفي توك (۱۳)، په راپاڅېدلنګي راتلای شي .

(۱) په منزل (۱٤٤ مخ) دغه راز کمروتیه «متعدي غیر شخصي فعلونه» وایي .

## ۲-۲۳: اوړونه (ګردانونه)

۲-۲۳-۱: لومړی تېرمهال: چې له دویمې یا تېرمهالي اړخه د نوموړو د یارلس ګوټو توکونو او اړخونو په پام کې نیولو سره جوړېږي او اوړون مومي.

### ۲-۲۳: الف- له لېږد څخه، د دویمې ولاړخه.

۲-۲۳: ا- خبري:

۲-۲۳-۱: بشپړ تېرمهال (مطلقه ماضي):

چارول

| وګړي / ګڼ | یوګړی | ډېرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما وخوړه ، وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې | موږ وخوړه ، وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې |
| ۲ | تا وخوړه ، وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې | تاسې وخوړه ، وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې |
| ۳ | ده ، دې ، وخوړه ، وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې | دوی وخوړه وخوړه<br>وخوړل ، وخوړې |

بشپړ

| گڼه / وګړي | یو ګړی | د ېر ګړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | زه وخوړل شوم | موږ وخوړل شو |
| ۲ | ته وخوړل شوې | تاسې وخوړل شوئ ـ شوائست |
| ۳ | دی وخوړل شو<br>دا وخوړل شوه | دوی وخوړل شول<br>دوی وخوړل شوې |

[illegible]

| گڼه / وګړي | یو ګړی | د ېر ګړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ما ځان وخوړ | موږ ځان وخوړ ـ ځانونه وخوړل |
| ۲ | تا ځان وخوړ | تاسې ځان وخوړ ـ 〃 〃 |
| ۳ | ده ـ دې ځان وخوړ | دوی ځان وخوړ 〃 〃 |

۲-۲۲-۲ **چیا د ېنت :** لکه څنګه چې مو پاس ولیدل په تېرمهال کې چا روال کړ د بېچار کړغونډی د کړي مفعول تابع دی نه د کړېل، لکه: ما خټکی وخوړ، ما خټکي وخوړل، ما هندوانه وخوړه، ما هندوانې وخوړې . . . .

داچې ځینې بهرنې پښتو پوهان د پښتو لېږ ند تېرمهال کړ (متعدی مجهول فعل) ته پیچار (پاسیف) بولي،

د دوکتور ترېمپ په وینا یوه بې سروبوله خبره ده، ځکه چارول لېږ ندې له پیچار هغه سره توپیر لري او هغه داچې کړ ند پخپله د کړ ایښې (مسندالیه) دی. او کړ ند پېر هم نښيي، نو باید داسې و ویل شي چې د پښتو د تېرمهال چارول لېږ ند کړ (ماضي متعدي معلوم فعل) پایلې له کړي (مفعول) سره سمون لري.

## ۲- نابشپړ تېرمهال (همېشنی ماضي):

نابشپړ تېرمهال د بشپړوالي (مطلقیت) له (و) پرته نور د بشپړ هغه غوندې جوړښت سومي. پیچاري د پیچار کړ نوم به لنډون (خوړل)، د مرستیال کړ (کېدل)، په ملګرتیا جوړېږي او ګرېږي پایلې هم په دغه مرستیال کړ پورې نښلي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړه، خوړه، خوړل، خوړې | موږ خوړه، خوړه، خوړل، خوړې |
| ۲ | تا خوړه، خوړه، خوړل، خوړې | تاسې خوړه 〃 〃 〃 |
| ۳ | ده، دی خوړ، خوړه، خوړل | دوی خوړه 〃 〃 〃 |

| وګړي / ګڼه | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوږل کېدم | موږ خوږل کېدو |
| ۲ | ته خوږل کېدې | تاسي خوږل کېدئ، کېدست |
| ۳ | دی خوږل کېده<br>دا خوږل کېده | دوي خوږل کېده - کېدل<br>دوي خوږل کېدې يا کېدلې |

منځوال: ما ځان خوړ، موږ ځان خوړ...

## ۲- روان دنې (اعتيادي) تېرمهال:

دا هغه راز کړ دی چې د هېښوالي تر څنګه د روان دنيا (اعتيادي، جاج (مفهوم) هم راخلي، په دې ترګه دې راز کړته روان دنې همېشنی کړ هم ويلای شو له هسي عادي همېشني کړ سره يې توپير دا دی چې تر کړ د مخه يې د (به) ويکی هم زياتېږي.

| | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما به خوړه، خوړه، خوړې، خوړل | موږ به خوړه، خوړه، خوړل، خوړې |
| ۲ | تا به 〃 〃 〃 〃 | تاسي به 〃 〃 〃 〃 |
| ۳ | ده، دې 〃 〃 〃 | دوي به 〃 〃 〃 〃 |

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه به خوړل کېدم | موږ به خوړل کېدو |
| ۲ | ته به خوړل کېدې | تاسې به خوړل کېدئ، کېدلاست |
| ۳ | دی به خوړل کېده<br>دا به خوړل کېدله | دوی به خوړل کېده، کېدل<br>دوی به خوړل کېدې، کېدې |

منځوال: لکه: ما به ځان خوړ....

## ٤: لنډ تېر مهال (قریب مضي):

د دې مهال کړ د چارو پېښېدنګ له مخې کله داسې وي چې په تېر مهال کې یو مخین بشپړ شوی وي او یا داچې تر اوسمهاله یې هم څه اوږدوالی موندلی وي. رغبډ نګ یې دا ډول دی چې له بېچار کړ نوم (مفعولي صفت) «خوړلی» سره مرستیال کړ (دول) په اوسمهال کې اوړون مومي. په بېچار کې یې پر دې سربېره دوېم مرستیال کړ («کېدل» یا «شول») ورسره هم اوړون کوي او د دې لپاره چې وګړېزې پایلې په دوارو مرستیالکړونو پورې نښلي، نو داسې نیا لپاره د بېچار کړ نوم پایلې ته اړتیا نه پاتېږي. همدا راز په لرې تېر مهال بېچار کړ کې هم د بېچار کړ نوم (خوړلی)، پای غوړځي او د (خوړل) په بڼه پاتېږي، چې ځینې ادو د سېز پښتو پوهان (ګرامر پوهان)

يې له (مصدر) سره ګډ وي، او اشتباه کوي.

فاعلي حال

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی دی، خوړلې ده<br>خوړلي دي، خوړلې دي | موږ خوړلی دی، خوړلې، خوړلي دي<br>خوړلې دي. |
| ۲ | تا 〃 〃 〃 〃 | تاسې 〃 〃 〃 〃 |
| ۳ | ده، دې 〃 〃 〃 | دوی 〃 〃 〃 〃 |

مفعولي حال

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوی، شوې یم | موږ خوړل شوي، شوې یو |
| ۲ | ته خوړل شوی، شوې یې | تاسې خوړل شوي، شوې یاست |
| ۳ | دی خوړل شوی دی<br>دا خوړل شوې ده | دوی خوړل شوي دي<br>〃 〃 〃 کې 〃 |

منځوال؛ لکه ما ځان خوړلی دی . . . .

## ۵- لرې تېر مهال (بعيد ماضي):

د لرې تېر مهال کړنه هغه وخت اړتیا پرېوځي چې وروسته ترې بشپړ تېر مهال، یا نږدې تېر مهال کړنه پېښه شوې وي. یا په بله وینا، لرې تېر مهال کړنه یو له دغو نورو دوو لو تر کارېدنې (استعمال)، وروسته

کارول کیږي، لکه چې وایي :
ته پرلسو بجو راغلې (بشپړ) - او زه پر نهو بجو راغلی وم (لر)
یا ته پر لسو بجو راغلی یې (الند) 〃 〃 〃 〃 〃
دلر تېرمهال او پرون نوږ دلنډ هغه غونډې دی، خو دلته
ورسره مرستیال کړ «ول»، سم په لره زمانه کې او پرون مومي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی و، خوړلې وه<br>خوړلي وو، خوړلې وې | موږ خوړلي و، خوړلې وه، خوړلي وو<br>خوړلې وې. |
| ۲ | تا 〃 〃 〃 〃 | تاسې 〃 〃 〃 〃 〃 |
| ۳ | ده، دې 〃 〃 〃 | دوي 〃 〃 〃 〃 〃 |

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوی، شوې وم | موږ خوړل شوي، شوې وو |
| ۲ | ته 〃 〃 〃 〃 〃 | تاسې 〃 〃 〃 〃 |
| ۳ | دی خوړل شوی و<br>دا خوړل شوې وه | دوي خوړل شوي وو<br>دوي خوړل شوې وې |

منځوال لکه: ما ځان خوړلی و . . . .

## ٦- ګوماني تېر مهال (احتمالي يا شکيه ماضي):

هغه کړنه وايي چې کېدنه يې ګوماني او ارنګمن (مشکوک) وي، رغېدنه يې داسې کېږي چې له بېچارکړنوم «خوړلی» يا «خوړل» سره «به»، ملتياموې او په چاروال کې يوازې «ول» سرستيالکړ يوازېنی بڼه «وي» او په بېچارکې ور سره «شول» او د «ول» توليې او سمهال بڼې او ړون کوي. او د «وي» په بڼه يوازې په درېيم وګړي کې «ګوندې» يا «ښايي» غوندې ګوماني ويکي هم ورسره تړلي زمل کېدای شي.

| | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ١ | ما به خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وي | موږ به خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وي |
| ٢ | تا به 〃 〃 〃 〃 〃 | تاسې به 〃 〃 〃 〃 〃 |
| ٣ | ده، دې 〃 〃 〃 〃 〃 | دوی به 〃 〃 〃 〃 〃 |

| | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ١ | زه به خوړل شوی، شوې يم | موږ به خوړل شوي، شوې يو |
| ٢ | ته به 〃 〃 〃 〃 يې | تاسې به 〃 〃 〃 〃 ياست |
| ٣ | دی به خوړل شوی وي<br>دا به خوړل شوې وي | دوی به خوړل شوي وي<br>دوی به خوړل شوې وي |

منځوال بلکه: مابه ځان خوړلی وي....

## ۷- ارماني تېرمهال (تمنايي ماضي):

چې د يو ارمان څرګندونه کوي او د دوو له مخې په بشپړ تېرمهال نابشپړ تېرمهال، لړاو ګوماني تېرمهال پورې اړه لري:

### ۷-۱- ارماني بشپړ تېرمهال (تمنايي مطلقه ماضي):

چې د رغېدنې له مخې په بشپړ تېرمهال او د جاج او مونځې (مطلب او مفهوم) له مخې په اوسمهال پورې اړه لري. جوړېدنه يې د بشپړتيا (مطلقيت) «و» په مختاړي کولو او د چاروال لپاره د بېچار کړنوم «مفعولي صفت» په اوړن دولو او د بېچار لپاره د ياي په غوړځولو او د مرستيال کړ «شول» د بېچار کړنوم په اوړن دولو ترسره کېږي.
دغه راز يې د ريا تې څرګندتيا لپاره تر اېښي (مسند اليه) دمخه يا وروسته د (کاشکې)، وييکي ديو نحوي توک په توګه هم ملګری کېدای شي.

| | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ١ | کاشکې ما وخوړای | کاشکې موږ وخوړای |
| ٢ | کاشکې تا وخوړای | کاشکې تاسې وخوړای |
| ٣ | کاشکې ده- دې وخوړای | کاشکې دوي وخوړای |

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه وخوړل شوای | کاشکې موږ وخوړل شوای |
| ۲ | کاشکې ته وخوړل شوای | کاشکې تاسې وخوړل شوای |
| ۳ | کاشکې دی، دا وخوړل شوای | کاشکې دوی وخوړل شوای |

**تمرین:** لکه: کاشکې ما ځان وخوړلای....

## ۲-۷: ارماني نابشپړ تېرمهال

چار وال یې بې د بشپړتیا (مطلقیت) له «و» د بشپړ هغه غونډ(لې) جوړېږي او بې چاربې له دغه «و» د مستیا لکړ په بدلولو (شول، پرکېدل) د بېچا ز بشپړ هغه غونډې راځي:

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما وخوړای | کاشکې موږ وخوړای |
| ۲ | کاشکې تا وخوړای | کاشکې تاسې وخوړای |
| ۳ | کاشکې ده، دې وخوړای | کاشکې دوی وخوړای |

ښځینه

| | یوګړی | ډېرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه خوړلې کړې وای | کاشکې موږ خوړلې کړې وای |
| ۲ | کاشکې ته خوړلې کړې بدې | کاشکې تاسې خوړلې کړې وای |
| ۳ | کاشکې دې، دا خوړلې کړې بدې | کاشکې دوی خوړلې کړې وای |

منځوال: لکه، کاشکې ما ځان خوړلای...

۳-۷- ارماني لرې مهال (تمنائي بعید ماضي):

چاروال یې داسې جوړېږي چې په بېچار کړنوم (مفعولي صفت) پسې د مرستیال کړ «ول» بېچار کړنوم او ړند «وای» راشي او بېچارې د بېچار کړ نوم په لنډ ولو او «شول» په زیاتو لورانو ته کېږي.

نارینه

| | یوګړی | ډېرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما خوړلی، خوړلي، خوړلې، خوړلې وای | کاشکې موږ خوړلی، خوړلي، خوړلې، خوړلې وای |
| ۲ | کاشکې تا 〃 〃 〃 | کاشکې تاسې 〃 〃 〃 |
| ۳ | کاشکې ده، دې 〃 〃 〃 | کاشکې دوی 〃 〃 〃 |

۲-۳۳: اړوتي تېرمهال (شرطيه ماضي):

چې د يو اړوتي کړن لپاره آړ (شرط) څرګند وي، په دې توګه دا راز کړ د يو بل کړ لپاره آړ (شرط) برابروي، دا مانا چې که دغه کړ تر سره نشي، هغه بل کړ هم کېدونکى نه دی او همدا راز که هغه بل کړ موخن او مطلوب نه وي، نو د اړوتي کړ څرګندونې ته کومه اړتيا نه پېښېږي، لکه: (که وريځ نه وي باران نه کېږي)، يا که وريځ وي نو باران کېږي يا به باران وشي)، څنګه چې آړ (شرط) په هر کړ او کړن کې راتلای شي، نو دا او سمهال، څوندې په تېر مهال کې څرګند يږي او همداغو مره د ولو نه لري د آړ د څرګندونې نښه او توکي (که) ده کې چې په سر کې راځي.

۱- اړوتي بشپړ تېرمهال: چې له خبري بشپړ تېرمهال څخه د (که)، په مخکې کولو سره جوړېږي او په جاج «مفهوم» کې سپيه او سمهال پورې اړه لري: لکه: که ما وخوړه، که موږ وخوړه يا که ما خوړلای، که موږ وخوړلای......

۲- اړوتي نابشپړ تېرمهال (شرطيه استمراري ماضي): لکه: که ما خوړه، که موږ خوړه يا که ما خوړلای، که موږ خوړلای.

۳- اړوتي لنډ تېرمهال (شرطيه قريبه ماضي): لکه: که ما خوړلې ده، که موږ خوړلې ده يا که ما خوړلې وي، که موږ خوړلې وي......

(۶) اړوتي لرې تېرمهال (شرطیه بعیده ماضي):
لکه: که ما خوړلی و، که مونږ خوړلی و یا که ما خوړلی و، که مونږ خوړلی وي.....

په دې توګه هر اړوتي تېرمهال په څرمه (ضمني) ډول ګوماني-ارماني هسېنې ..... هم کېدای شي.

۲-۲۴: توانی تېرمهال (امکاني یا اقتداري ماضي):
چې د یو کار کېدو (امکان) یا نه کېدو ته یې څرګندوي. په پښتو کې په ساده جوليز ډول یوازې بشپړ تېرمهال او نابشپړ تېرمهال توانی کېدای شي او همدغه دوه ډوله تېرمهالونه په څرمه توګه نور تېرمهالونه هم راخلي. رغېدنګ یې د بېچارکېدو دپای غبرګون په اوږدو (خوړلای یا خوړای) او ورسره د مرستیال کړ (شول یا کېدل، یا دواړو) په ګردانولو سره ترسره کېږي.

۱- توانی بشپړ تېرمهال: لکه ما وخوړلای شو، خوړای شو، تا- خوړلای شو، وخوړای شو....

۲- توانی نابشپړ تېرمهال: لکه: ما وخوړلای شو، خوړای شو، تا خوړلای شو، خوړای شو....

۲-۳ اعتیادي: لکه: ما به خوړلای شو، خوړای شو، تا به خوړلای شو، خوړای شو.

۲-۲۵: ټینګاري تېرمهال (تاکیدي ماضي):
چې د کړ د ترسره کولو یا نه ترسره کولو ټینګار (تاکید) څرګندوي او

يوازې په نابشپړ او بشپړ تېرمهال کې راتلای شي:

۱- **تېنګارې بشپړ تېرمهال**: چې له بې چاره کړنوم سره د «به» «و» يا «واى» په ملګرتيا جوړ ېږي، لکه: مابه خوړلى و يا مابه خوړلای وای او يا خوړلې به وي و، خوړلې به وې وای.

۲- **تېنګارې نابشپړ تېرمهال**: چې له اعتيادي سره په اهنګ کې تو پير لري، لکه مابه خوړ، يامابه خوړلای، مابه خوړای. کله کله يې «بويه» ياباېد» هم په سر کې راتلای شي او د پای لېکنښه يې ندائيه راځي.

۳-۲ : **هېښنې تېرمهال (تعجبي ماضي)**: چې په هېښنتيا (تعجب يا تحير) سره څرګند ېږي.
دا ارزکړ يوازې په اهنګ کې له خبري هغه سره توپير ېږي، لېکنښه يې يوه ېلښنه (ندائيه) ده.
بېلګه، لکه: ماوخوړ! تاوخوړ! ....

۲-۲۷ : **پوښتني تېرمهال (استفهامي ماضي)**:
چې د يوه کړن پېښېدنه يا نه پېښېدنه پوښتي. دا هم له خبري کړ سره يوازې په اهنګ کې توپير موي، په دې توګه چې د خبري کړاهنګ له عادي نج يا اهنګ سره اوارپيل مومې او تيت پای ته رسي او د پوښتني دا له يوه زيات پيا و ړي نج يا په بله وينا له يوه هوار اهنګ سره پيل مومي او په پای کې لوړ ېږي. پوښتني کړ په بشپړ تېرمهال، نابشپړ تېرمهال، لنډ تېرمهال، لرتېرمهال او

نوانې تېرمهال کې راتلای شي . لیکنښه یې پای ته یوپوښتنښه (؟) ده.

۱- پوښتنې بشپړتېرمهال، لکه: ما وخوړ، تا وخوړ...؟
۲- پوښتنې نابشپړتېرمهال، لکه: ما خوړ، تا خوړ....؟
۳- پوښتنې لنډتېرمهال، لکه: ما خوړلی دی، تا خوړلی دی....؟
٤- پوښتنې لرتېرمهال، لکه: ما خوړلی و، تا خوړلی و...؟
۵- پوښتنې نوانې تېرمهال لکه: ما وخوړلای شو، تا وخوړلای شو..؟
یا نابشپړ نوانې، لکه: ما خوړلای شو، تا خوړلای شو...؟

۲۸- ب - نالېږن نل کړ (راتلل)، له بشپړ اندو (سوبلتیغو) دو بیو لپو راتلل، (رات): راغل - (راغ -) څخه جوړېږي. (راغل - بشپړ مطلق) او رات - د نابشپړ (غیرمطلق) کړ و لی هم بلل کېږي:

۲۸-۱: خبري: چې له راغل - یا راغ - ربنې څخه جوړېږي بت او او نوره ...

۲۸-۱-۱: بشپړتېرمهال (مطلقه ماضي):

| | یوګړي (مفرد) | ډېرګړي (جمع) |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلم | موږ راغلو |
| ۲ | ته راغلې | تاسې راغلئ، راغلاست |
| ۳ | دی راغی (راغلۍ)<br>دا راغله | دوي راغلل<br>راغلې (راغلې) |

۲-۲-۲-۳۷ لنډ تېر مهال:

چې د لېږ نه کړي عوض ې دېچارګړ نوم له انډول (راغلی) تخنه درستاکم (ی) او (د) په ملګرتیا جوړېږي او ګردانېږي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلی یم، راغلې یم | موږ راغلي، راغلې یو |
| ۲ | ته راغلی، راغلې یې | تاسي راغلي، راغلې یئ، یاست |
| ۳ | دی راغلی دی<br>دا راغلې ده | دوی راغلي دي<br>دوی راغلې دي |

۲-۲-۲-۳۸ لرې تېر مهال (بعید ماضي):

چې له لنډ تېر مهال سره په مرستیا لګرکي توپیر موي، هغه د ایچې د لته د "ول"، "ولی"، "و"، په کار لوېږي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلی وم، راغلې وم | موږ راغلي، راغلې وو |
| ۲ | ته راغلی، راغلې وې | تاسي راغلي، راغلې وئ، وآست |
| ۳ | دی راغلی و<br>دا راغلې، راغلې وه. | دوی راغلي وو<br>دوی راغلې وې |

## ۱-۲-٤: نابشپړ تېر مهال (همېشني يا استمراري ماضي):

چې د «راغل» له بشپړ اندې ملګرې ولې (راتل) يا (رات) څخه جوړ سبت او اوړون مومي. په دې توګه چې وګړيزې پايلې په هلغه ولې پورې سېده نښلي:

| | يوګړي | ډېرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه راتلم | موږ راتلو |
| ۲ | ته راتلې | تاسې راتلئ، راتلاست |
| ۳ | دی راته (راتلو، راتلۀ)<br>دا راتله | دوی راتلل<br>دوی راتلې، راتللې |

## ۵- روږدي تېرمهال (اعتيادي ماضي):

چې له نابشپړ تېرمهال څخه د (به) وييکي زيات لري، لکه: زه به راتلم، ته به راتلې....

## ٦- ارماني تېرمهال (تمنايي ماضي):

چې په بشپړ، نابشپړ او لرتېرمهال پورې اړه لري او د مخې او جاج (مفهوم) له مخې ن ياتره په او سمهال پورې اړه نيسي. بشپړ يې له نابشپړ سره د بشپړتيا (مطلقيت) «آو» توپير بري.

بشپړې لکه (ولاړ لاى) يا ولاړ اى). او نابشپړې لکه؛ (تللاى)، لري چې د آرکړنو د غبرګون د اوږ دولو پرځاى د مرستيالکړ «ول» هغه پر او ږده غبرګون اړ وي. ديوه څرګندتيا لپاره د د واړ و د ولو په سرکې د «کاشکې» ويکي ديوه نحوي توك په توګه هم راوړل کيداى شي.

(۱) بشپړ ارماني:

| | يوګړى | ډېرګړى |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغللاى، راغلى | کاشکې موږ راغللاى، راغلاى |
| ۲ | کاشکې ته « « | کاشکې تاسې « « |
| ۳ | کاشکې دى، دا « « | کاشکې دوى « « |

(۲) نابشپړ ارماني:

| | يوګړى | ډېرګړى |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راتللاى، راتلاى | کاشکې موږ راتللاى، راتلاى |
| ۲ | کاشکې ته « « « | کاشکې تاسې « « « |
| ۳ | کاشکې دى، دا « « | کاشکې دوى « « « |

(۲) لرارماني:

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغلی، راغلې وای | کاشکې مونږ راغلي، راغلې وای |
| ۲ | کاشکې ته 〃 〃 | کاشکې تاسې 〃 〃 |
| ۳ | کاشکې دی، دا 〃 〃 | دوي 〃 〃 〃 |

۷- توانی تېرمهال (امکاني ماضي):

چې په «تلل» غوندې نالېږند کړ نې په ساده ډول یوازې، نابشپړ تېرمهال راځي او هغه هم په دې ډول چې پرېبېچي د بېچار کړنوم انه ول «تللی» پای عنګفن او بېن دېږي او مرستیالکړ «شول» ورسره او یوځن مومي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راتللی، راتللې شوم | مونږ راتللي، راتللې شو |
| ۲ | ته 〃 〃 شوې | تاسې 〃 〃 شوئ، شوئ |
| ۳ | دی 〃 〃 شو<br>دا 〃 〃 شوه | دوي 〃 〃 شول<br>دوی 〃 〃 شولې، شوې |

## ۸- ګوماني تېر مهال (شکیه یا احتمالي ماضي):

چې بشپړ، نابشپړ، لنډ او لرې تېر مهال یې په دغو لاندې دوو ډولو جوړېږي.

(۱) بشپړ ګوماني: چې د (لکه چې) په ملتیا د خبري هغه غونډې جوړښت مومي، لکه:

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | لکه چې زه راغلم | لکه چې موږ راغلو |
| ۲ | لکه چې ته راغلې | لکه چې تاسې راغلئ، راغلاست |
| ۳ | لکه چې دی راغی<br>لکه چې دا راغله | لکه چې دوی راغلل<br>لکه چې دوی راغلې، راغلي |

(۲) نابشپړ ګوماني: چې له خبري نابشپړ تېر مهال څخه د (ګوندې، سنايي یا لکه چې) په ملتیا جوړېږي او د روښتني لپاره یې «به» هم ملګري کېږي.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ګوندې سنايي یا لکه چې زه راتلم | ګوندې سنايي لکه چې موږ راتلو |
| ۲ | 〃 〃 〃 ته راتلې | 〃 〃 〃 تاسې راتلئ، راتلاشت |
| ۳ | 〃 〃 〃 دا راتله، راتله | 〃 〃 〃 دوی راتلل، راتله<br>〃 〃 〃 راتلې، راتلي |

روښ دئ لکه: زه ګوندې، سبايي يا لکه چې زه به راغلم، ته به راتلې....

(۳) لنډ ګوماني: د بشپړ ګوماني غونډې په (لکه چې) يا (به) له خبري هغه سره نو پيښيږي.

| | يو ګړی | ډېر ګړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | لکه چې زه راغلی، راغلې يم | لکه چې موږ راغلي، راغلې يو |
| ۲ | 〃 〃 ته 〃 〃 | 〃 〃 تاسي 〃 〃 يئ، ياست |
| ۳ | 〃 〃 دی، دا 〃 〃 وه | 〃 〃 دوي 〃 〃 دي |

يا زه به راغلی يم....

(٤) لږ ګوماني: چې له خبري هغه سره د «ګوندې»، «سبايي» «لکه چې»، په سرباري کولو نو پيښيږي لکه ګوندې زه راغلی وم، زه به راغلی وم.

۹- ټينګاري تېر مهال (تاکيدي ماضي):

چې بشپړ، نابشپړ او لږ راتلای شي او د مخې او جاج له پلوه زياتره

په استعمال ابهري او د پوره څرګندتيا لپاره يې په سر کې، «بويه»
يا «بايد» هم ملګري کيږي؛ البته، بويه د کېږ ځای له مصدرين رالېږي ...
(۱) بشپړ تېنګاري: د «به» يا «بايد» په مختاړي کولو او د «اى»
په ورو ستاړي کولو له «راغلل» يا «راغل» څخه جوړيږي لکه:
زه به راغللای، راغلای، يا زه بايد راغللای، راغلای.
(۲) نابشپړ تېنګاري: چې د «به» يا «بايد» په مختاړي کولو
او «اى» ورو ستاړي کولو له «راتلل» يا «راتل» څخه جوړيږي،
لکه: زه به راتللای، راتلای يا- زه بايد راتللای، راتلای... او
يا به، راتلى په او داسې نور.
(۳) لږ تېنګاري: چې له خبري تېرمهال څخه د «به» په سرباري
کولو توپيريږي، لکه: زه به راغلی وم، ته به راغلی وې...
که د «به» ځای «بايد» يا «بويه» ونيسي، نو بيا د «ول»
کې دوم پای غبرګيږي، لکه ارماني څخه غوندې ورسره او ږديږي،
لکه: زه بايد راغلی وای، ته بويه راغلی وای. چې البته په دغه وار
وګړ وکې بيا نرينه او ښځينه سره توپيريدای شي، د پای ليکنښه يې
بلښنه (!) راځي.

## ۱۰- پوښتني تېرمهال (استفهامي ماضي):

په دې مانا چې که په هر دول تېرمهال کې پوښتنه راشي، نو پوښتني
تېرمهال بلل کيږي. بشپړ لکه: زه راغلم؟ نابشپړ، لکه: زه راتلم؟
لنډ لکه: زه راغلی يم؟ لږ لکه: زه راغلی وم او داسې پسې نور.

## ۱۱- هېښتني تېرمهال (تعجبي ماضي):

چې هېښتيا ترې څرګندېږي او له پوښتنې سره يوازې په آهنګ کې توپير موجې، لکه: زه راغلم! ته راغلې! او هم داسې په نورو تېرمهالونو کې.

## ۱۲- اړوتي تېرمهال (شرطيه ماضي):

چې په تېرمهال کې د کوم کړ پېښېدنه، يا نه پېښېدنه په بوه آړ «شرط» پورې تړلې وي دا کړ نور تر بای پورې د خبرې هغه غوندې رغېدنګ لري، خو په سر کې يې يو څوې توك آړ ويکي «شرطيه ادات» «که» راوړل کېږي، لکه: که زه راغلم. که زه راتلم....

## دوهم - د اوسمهال کړاوونې (ګردان):

اوسمهال کړ، امانا چې کړ همدغه مهال او یا یوڅه وړوسته پېښېږي
چې یا د وینه یې کېږي. چاروال یې له لومړي ولې (ریښې) څخه،
جوړېږي او بیا یې له تېرمهال یا په بله وینا له دویمې ولې څخه
چې په دوارو بڼو کې وړدیوري ټاکلي او ورونې تاړي (تصریفي توالي)
نښلول کېږي. دغه تاړي د ایښي (مسند الیه) او دڅه د ګڼې
ښرګند ونه کوي، نه د نوړي او مهال. د امانا چې په ناتېر
مهال کې نوړي نه نو پېښېږي. او مهال خوزیا تړه پخپلې
کړولې سره ښرګندېږي نه موجي.

### الف له لېږند خوړ څخه:

۱- بشپړ اوسمهال:

۱-۱: خبري چاروال: چې له لومړۍ ریښې څخه زیاتړ

د بشپړتیا یې (مطلقیت) ٥ و، په هغتا یې کولو او دا رونې نښلوونې
په زمانیا لاس ته راځي.

| | یوګړی (مفرد) | ډېرګړی (جمع) |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړم | وخوړو |
| ۲ | وخوړې | وخوړئ |
| ۳ | وخوړي | وخوړي |

بېچار: چې له دويمې ولې څخه د لاسته راغلې بېچار کړنوم په لنډون
او هغه سره د مرستیالکړ (شول) په اوړون جوړېښت سومې.

| | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړل شوم | وخوړل شو |
| ۲ | وخوړل شې | وخوړل شئ |
| ۳ | وخوړل شي | وخوړل |

منځوال لکه: ځان وخورم ....

۲- اړوتي بشپړاوسمهال (شرطي حال):

چې له خبري بشپړ اوسمهال سره توپير يې پوازې اړوېکي يا شرطيه ادات «که» په سرباري کولو څرګند يږي.

چاروال لکه: که وخورم، که وخورې ....
بې چار لکه: که وخوړل شم، که وخوړل شي ....
منځوال لکه: که ځان وخورم، که ځان وخورې ....

۳- ارماني بشپړاوسمهال:

چې د (کاشکې) په ځکې کولو سره د خبري څخه عونډي رغيدنګ مومي:

چاروال لکه: کاشکې وخورم، کاشکې وخورې ....
بې چار لکه: کاشکې وخوړل شم، کاشکې وخوړل شي ....
منځوال لکه: کاشکې ځان وخورم، کاشکې ځان وخورې ....

٤- پوښتني بشپړاوسمهال:

چې په رغيدنګ يې له خبري څخه يوازې د غږ په پياو رتياو داهنګ په لوړتيا کې توپير لري. ليکنښه يې پوښتنښه ده:

چاروال لکه: وخورم، وخورې ....
بې چار لکه: وخوړل شم، وخوړل شي ....
منځوال لکه: ځان وخورم، ځان وخورې ....

## ۵- هیبنني بشپړاوسمهال:

له پوښتني هغه څخه یوازې په اهنګ او د غږ په ونګي به اکر (وضع) بېلتون موندلای شي او لیکنښه یې د پوښتنښې (؟)، پر ځای بلښنه (!) راځي.

چاروال لکه: وخوړم! وخوړې!

بې چار، لکه: وخوړل شم! وخوړل شې

## ۶- توانې بشپړاوسمهال:

چې له دوېمې ولې څخه د لاسته راغلي بېچاړ کړنوم د پای غږ ګغږ په اوښ دولو او ورسره د «شول» په اوړونو لو (ګردانولو) سره منځ ته راځي. د جولې له منځې له بشپړ تېرمهال سره کوم توپیر نلري. په زړه پورې دا چې بې چاروال او بېچاړ سره یوازې د غږ په ونګي د اکر (وضعیت)، چاپېریال او د ریځ (موقعیت) او نوڅړو له منځې توپیر پیدا ای شي، لکه: زه غم وخوړلای شم، ما غم و خوړلای شي، یا غم ما وخوړلای شي.

| وګړی ګړنه | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړلای شم | وخوړلای شو |
| ۲ | وخوړلای شې | وخوړلای شئ |
| ۳ | وخوړلای شي | وخوړلای شي |

۷- امري بشپړاوسمهال:

چې یوازې ددویم وګړي لپاره راځي، چاروال یې له لومړي لحې څخه په ساده ډول او بېچاریې له دویمي ولې څخه د لاسته راغلي بېچارکړ نوم په لنډوالي اود مرستیالکړ «شول» په اوږدو سره تر سره کېږي.

چاروال لکه: وخوره! وخورئ!

بېچاړ لکه: وخوړل شه! وخوړل شئ!

۸- ټینګاري یا تاکیدي بشپړاوسمهال:

چې له خبري هغه سره یې توپیر یوازې د ټینګار وییکي یا تاکیدي اداة (دې) په ورډنیا تړلو تر سره کېږي.

چاروال لکه: (لومړۍ سره لکه: زه دې وخورم! ته دې وخورې! ....

بې لومړي لکه: و دې خورم! و دې خورې! ....

بېچاړ لکه: (لومړي سره) لکه: و دې خوړل شم! و دې خوړل شې!

بې لومړي لکه: و دې خوړل شم! و دې خوړل شي!

۹- غوښتني بشپړاوسمهال:

چې دعا یا بنېرا څرګندوي او یوازې په ناپېژ مهال کې راځي. د ټینګاري هغه او کله کله د امري هغه غوندې جوړېږي، خو پوره څرګند تیایې په یوه غوښتلو له (جمله) کې له نورو توکو

سړه کیدای شي، لکه:
سړ دې وخورم یا سړې دې وخورم، سړې دې وخوره! یا په دغو
متلونو کې:
نه اوښه سپه ده نه ګله، دوی دې وخوري یو تربله (میدان)
نه یوه سپه ده نه بله، دوی دې وخوري یو تربله (د ځلمو نارو)
په پښتو کې زیاتره آرکمونه په ساده او یوستوي توګه د غوښتنې
لپاره راتلای نشي او مرستیال کمونه او توکونه ورسره ملګري کیږي.
ساده، لکه: ومره! ژوره! (زنده باد).
ترښتي (ترکیبي)، لکه: ستړی مه شې! خوار مه شې! هر کله راشې!
خیر یوسې!
یا له (خدای) سره: خدای دې خوار مه کړه! خدای دې وبښه، خدای دې
سبه در سره وکړي....

۱۰- ګومانۍ بشپړاوسمهال:

چې د اړنګ قیدیکي (شکیه اداتونه) او عنصرله یې و توکونو په
مختاړي کولو له حبري هغه ټخه جوړیږي.
چارواک، لکه: سبا یې چې وخورم، ګوندې وخورم، لکه چې
وخورم، کیدای چې وخورم.
بیچاره، لکه: سبا یې چې وخوړل شم، ګوندې وخوړل
شم، لکه چې وخوړل شم، ګوندې چې وخوړل شم....

## ۲- نابشپړ اوسمهال (غیر مطلق یا استمراري حال):

### ۱- خبري:

چاروال: چې يې له کوم مختاري له لومړي کړولي سره د وګړيزو پایلو (خاتمو) په ملتيا جوړېږي.

| ګڼ / وګړی | يوګړی (مفرد) | ډېرګړی (جمع) |
|---|---|---|
| ۱ | خورم | خورو |
| ۲ | خورې | خورئ |
| ۳ | خوري | خوري |

بېچار: چې له لنډ کړ شوي بېچار کړه نوم «خوړل» سره مرستيال کړ «کېدل» په اوسمهال کې اړوند موخې، لکه:

| ګڼ / وګړی | يوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | خوړل کېږم | خوړل کېږو |
| ۲ | خوړل کېږې | خوړل کېږئ |
| ۳ | خوړل کېږي | خوړل کېږي |

منځوال لکه: ځان خورم ....

## ۲- اړوتي نابشپړ اوسمهال:

چې داړ ونيکي يا شرطيه ادات «که»، په مختاړي کولو له خبري مخه څخه جوړيږي.

چاروال، لکه: که خورم، که خوري ....

بيچاره لکه: که خوړل کېږم، که خوړل کېږي ....

منځوال، لکه: که ځان خورم، که ځان خوري ....

## ۳- ارماني نابشپړ اوسمهال:

چې د جولې له مخې د ارماني نابشپړ تېرمهال سره کوم توپير نلري، لکه: کاشکي ماخوړلای شوای. په دې توګه يې له نورو ارماني (تېرمهال يا اوسمهال) ډولونو سره د چاروال او بيچار توپير، د ديځ او نوځ له مخې کېدای شي.

## ۴- پوښتني نابشپړ اوسمهال:

له بشپړتيايي يا مطلقه «و» پرته نور د پوښتني بشپړ اوسمهال غوندې رغيدنګ لري، لکه خورم.

## ۵- هيښني:

دا بيا له پوښتني سره يوازې په اهنګ او چاپيريال سره توپير لري. شي او ليک کې په بلنښه لکه: خورم!

## ۶- ګوماني نابشپړ اوسمهال:

له بشپړ تيايي «و» پرته نور د بشپړ هغه غونډي رغېږي لکه: ګوندې خوړم يا ګوندې خپل سر خوړم....

## ۷- تواني نابشپړ اوسمهال:

دجولي له مخې له تواني نابشپړ تېر مهال سره کوم توپير نلري او يوازې د جاج او معنې (مفهوم او مقصد) له مخې ترې توپير پيدا ای شي او هماغسې د چاروال او بېچار بيلتون د تومځو په اوښتون سره راځي، لکه: ما خوړ لی شوای، زه خوړ لی شوای....

## ۸- امري نابشپړ اوسمهال:

چې کټ مټ د بشپړ هغه غونډي يوازې د دويم وګړي لپاره راځي، لکه: خوره! خورئ!

## ۹- ټينګاري يا تاکيدي نابشپړ اوسمهال:

چې د «دې» په ملتيا په دې ورو سته ډول جوړېدنګ مومي.

چاروال: (له تومځو سره)، لکه: زه دې خوړم، ته دې خورې.

بې تومځو لکه: خوشال کېږم دې، خوشال کېږې دې!

## ۱۰- غوښتنې ناښېړا وسمهال:

چې د ېړلن دود لري او هغه همربه ځېنو کېږا و بیا په یوه غوښتله کې له نورو توکو نو سره لکه:

خدای دې لره ! خدای دې له هرې بلا ساته!

خدای دې مه بښه ! خدای دې مه خواروه !

خدای دې مه کموه او داسې پسې نور

بیچار: له نورو سره، لکه: زه دې خوړل کېږم، ته دې خوړل کېږې.

د بې نورو لکه: خوړل کېږم دې، خوړل کېږې دې.

## ب نالېږندې- ولاړ او تلل یایل څه:

## ۱- بشپړا وسمهال:

چې د ویې ولې« ولاړ» سره مرستیالکړ «شول» او ړون مومي.

### ۱- خبري:

| ړبړ گړي | یوگړي | وګړی |
|---|---|---|
| ولاړ شو | ولاړ شم | ۱ |
| ولاړ شئ | ولاړ شي | ۲ |
| ولاړ شي<br>ولاړ شي | ولاړ شي<br>ولاړه شي | ۳ |

## ۲- اړوتي بشپړ اوسمهال:

چې د اړونې یا شرطیه ادات «که» په مختاړي کولو د خبرې څه غوښتې رغېدنه موږي، لکه: که ولاړ شم، که ولاړ شې....

## ۳- ارماني بشپړ اوسمهال:

چې د ټولو وګړو لپاره له «ولاړ» څخه د جوړ شوي کړ نوم «ولاړلی» په اوږدوله جوړ ېږي او د هغه څرګندتیا لپاره یې د «کاشکې» ویکي هم په سر کې راځي، او د جولې له مخې له ارماني بشپړ تېر مهال سره کوم توپير نلري، لکه:

کاشکې زه ولاړ لای یا ولاړ ای، کاشکې ته ولاړ لای، ولاړ ای....

## ۴- پوښتني بشپړ اوسمهال:

چې له خبرې څخه سره یوازې په اهنګ کې توپیر لري، لکه:

ولاړ شم، ولاړ شې.

## ۵- هېښني:

چې له خبرې یا په بله وینا له موبېتې څخه سره د غږېدو کې په یوه خانګړي اکر (وضعیت) او اهنګ کې توپیر موږي، لکه: ولاړ شم، ولاړ شې!

## ۶- توانې بشپړ اوسمهال:

چې له «ولاړ» سره مرستیال کړ «شول» او د نبرګغړي کړ نوم «شولی» یا «شوای» اوړول شوي او په دې توګه د جولې له مخې

له نقاني بشپړ تېر مهال سره سمون خوري .

| ګڼه | یوګړی | ډېرګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شوای، شوای | ولاړ شوای، شوای |
| ۲ | 〃 〃 〃 | 〃 〃 〃 |
| ۳ | 〃 〃 〃<br>ولاړ 〃 〃 | 〃 〃 〃<br>ولاړې 〃 〃 |

۷-امري بشپړ او سمهال :
چې یوازې په دویم وګړي پورې اړه لري، لکه : ولاړ شه ! ولاړ شئ !
۸- تینګاري بشپړ او سمهال :
چې له خبرې هغه سره یې تړلي یوازې د تینګار ویلې "دې" په
ورزیاتولو کېږي .
د لومړي وسره، لکه : زه دې ولاړ شم ، ته دې ولاړ شې ...
یې لومړي وړ، لکه . ولاړ دې شم ، ولاړ دې شې ....
۹-غوښتني بشپړ او سمهال :
چې له "ولاړ" څخه په سیده ډول د پرلې دود لري، لکه :
سر دې ولاړ شه ! ګورته ولاړ شې !

## ۱۰- گوماني يا احتمالي بشپړ اوسمهال:
چې له «ولاړ» سره مرستيال کړ بشول «، دا ړنګ ويپيکوشکيه ادات يا په بله وينا دا ړنګ تو کونو په ملتيا اوړون مومي، لکه:
سبايي چې ولاړ شم، ګونديې چې ولاړ شم، لکه چې ولاړ شم، کېدای چې ولاړ شم....

## ۲- نابشپړ اوسمهال:
چې يو انځي دا ړماني اوتواني لپاره «تل» يا «تلل» راځي لکه چې د جولي له ټخې له تېرمهال سره سمون لري او نورياتي پوولونه يې د «ځ» نه ولې ټخه جوړېږي چې د «تل» يا «تلل» او «ولاړ» سوپلاتيف (بشپړاند) بلل کېږي.

۱- خبري:

| وګړی / ګڼ | يو ګړی | ډېر ګړی |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ځم | ځو |
| ۲ | ځې | ځئ |
| ۳ | ځي | ځي |

۲- اړوتي، لکه: که ځم، که ځې....

۳- پوښتني، لکه: ځم؟ ځې؟

٤- هیښتني، لکه: څم! ځې!

٥- امري، لکه: څه! ځې!

٦- تېګاري، لکه: څم دې، ځې دې (له دریمو ګړیو پرته).

٧- ګومانی چې د ګونډې، او لکه چې، په ملګرتیا د خبرې هڅه غونډې جوړوي، لکه:

ګونډې څم، لکه چې څم.

٨- غوښتني: چې د ود نلري.

٩- ارماني: چې د «تل»، یا په بله وینا «تلل»، د چارنوم «تللی»، په اوږد دولو سره جوړېږي، لکه:

نه تللای، ته تللای....

١٠- توانی: چې د «تل»، یا «تلل» له چارنوم «تلی» یا «تللی» سره د مرستیا لکړ «شول» دا اوږد د چارنوم «شولای یا شوای» په ملتیا جوړېښت مومي، او د ټولو ګړو لپاره په همدې یوه بڼه راځي، لکه:

نه تللای شوای، ته تللی شوای....

## ۲-۹: دریم- داوسترمهال کړاوړون (ګردان)؛

اوسترمهال یا مستقبل کړېچې په ګانده (آینده) کې دیوچارپېښېدل ښکاره کوي. دجوړېدو او مانا له مخې له اوسمهال سره کوم توپیرنلري داد واړه مهالونه په یوه نامه "نااوسترمهال" هم نومول کېدلای شي، لکه څنګه چې دوکتورژبنۍ دغه نومونه کاروي. خو بیا هم د «به» وییکي په ژبه یا نو لوله اوسمهال سره بېلتون راتلای شي او په دې توګه په پرتلیزډول دغېږېدونکي دغږېدا له مهال نه یو څه وروسته مهال ښیي.

الف- له لېږند «خوړ» او «خوړ» څخه:

بشپړ لکه: وبه خورم، وبه خوري یا: وبه خوړل شم، وبه خوړل شي.

نابشپړ لکه: خورم به، خوري به یا: خوړل کېږم به، خوړل کېږې به....

ب- له نالېږند «خ» او «ولاړ» څخه:

بشپړ لکه: ولاړ به شم، ولاړ به شي...

نابشپړ لکه: ځم به، ځي به....

## ۲-۴۰: د کړ رغاونې (ساختمانی) ډولونه

د کړ تر بېلابېلو ګرامري ډولونو او وېشونو (ګردانو) وروسته غواړو د ویي رغاونې (لغوي ساختمان) له مخې د هغه رغاونه او جوړښت ترکېبي لاندې وڅېړو. په دې توګه له څلورو ډولونو کړونو سره مخامخېږو: ساده، بېلښتي (اشتقاقي)، ښاپرښاړ یا خواپرخوا، ترښتي (ترکیبي).

۱- ساده یا یوستوی کړ: چې ستنه یا بنسټ یې له یوګړېزي (یومورفیمېزې) ولې څخه جوړ وي. او اړوني مختاړي او وروستاړي ورپورې سېده نښلول کېږي، لکه: "خوړ" چې خوړم، خوړو، خوړې، خوړې، خوړي... او داسې نورې جوړونې ترې کېږي.

۲- بېلښتي یا اشتقاقي کړ: چې ستنه یا بنسټ یې له یوګړېزې ولې او کوم تاړېتي (افیکس) څخه جوړ وي. په دې مانا چې د کړ ولې

جاج (مفهوم) ډیره تاړي په ملتیا بشپړېږي او څرګندېږي. پا به بله وینا دغسې پوتاړي د جاج او ماناله مخې د کړ ولې نه بېلېږي وګۍ توک ګڼل کېږي. په دې بڼه یې که له ولې څخه لرې کړو، تاکلی جاج یې او ړي او یا یې کورټ له لاسه ورکوي. لکه: راغلل، درغلل ورغلل، راتلل، د رتلل، ورتلل، راکول، ورکول، درکول، کښېوتل کښېناستل، کښېایستل، کښېښول، پرې وتل، پورې وهل، پورې ایستل پورې کول..... دغه راز د بېرستاینوموونه او ځینو نوموونه هم د روستاړو په ښنبلولو نه د اوسمهال کړ ولې ګرځي، لکه: لوېدل، غځېدل، تېرېدل کارېدل، اوبېدل، دودېدل، لاسېدل لوېول، غځول، تېرول، کارول، وبول، دودول، لاسول.....

د بېلېښتي یا اشتقاقي او مشتق کړ رغاونه داسې لنډولی شو:

۱- کړوولی + مختاړي = راتلل، درتلل، ورتلل.....

۲- ستاینوم ولی + روستاړی = لوېدل، لوېول، غځېدل، غځول...

۳- ځینو نوم ولی + روستاړی = اوبېدل، اوبول، دودېدل، دودول.....

نمونې د ودېز ژېپوهان دغې دلې کړونوته (بدل والاصدر نه) وایي چې یو نا پوهېزه نوموونه ده.

## ۳- خواپرخوا یا سست ترېښتي (ترکیبي کړ):

هغه راز کړنه وایي چې د کړ ستې یا بنسټ له دوو یا د ېرو ښېلولکو

ګروټو (مورفیمونو) څخه هسې سرسري او یا بې یو ځایوالی نه لري.
په بله وینا یو پوخ ترنګ (ترکیب) یې بللای نشو، داسې چې سره
یوځای شوي توکونه، نه څخه له لاسه ورکوي او نه یا یلي، او
په دې یې پلیلې سره جلا جلا خپله اوړونې (تصریفي) لوښه (خاصه)
تر سره کوي، حال دا چې په یو پوخ یا رښتیني ترنګ کې د رغنده توکونو
(اجزاوو) څخه او تصریفي یا پلې پر وروستي توک باندې
بېلېدنه او یو کېدنه (تجمع او تحلیل) مومي.
د څا پر څوا کې رغاونه په دې لاندې ګروټو (اصطلاحاتو) کې
ښوول کېږي:

۱- څېرنوم + مرستیالکړ = زمری کېدل - کول، زمریه کېدل - کول
زمریې کېدل - کول، زمریانې کېدل - کول....

۲- ستاینوم + مرستیالکړ = مړ کېدل - کول، مړه کېدل - کول،
مړې کېدل - کول....

۳- چاروال کړنوم + مرستیالکړ = سرخوړونکی کېدل - کول،
سرخوړونکې کېدل - کول، سرخوړونکي کېدل - کول، سرخوړونکې
کېدل - کول....

۴- بېچاره کړنوم + مرستیالکړ = سرخوړلی کېدل - کول، سرخوړلې
کېدل - کول، سرخوړلي کېدل - کول، سرخوړلې کېدل - کول....

۵- شمېرنوم + مرستیالکړ = دوه کېدل - کول، دوې کېدل - کول....

۶- بیاځلې ستاینوم + مرستیالکړ = ترډ ترډ کېدل - کول، ترډه ترډه

کېدل-کول، تاوده تاوده کېدل-کول، تودې تودې کېدل-کول....
۷- سړېل + څېزتوم + مرستیالکړ: تر لاسه کېدل-کول....
۸- سربل + څېزتوم + اوسترېل + آکړ: له سره ېول، له پښو څخه غورځېدل-غورځول، تر پایه پورې رسېدل، رسول....
۹- څېزتوم + اوسترېل + مرستیالکړ: مخ ته کېدل-کول، شا ته کېدل-کول....
۱۰- څېزتوم + اوسترېل + آکړ: پای ته رسېدل-رسول، سرته ختل-خېژول....
۱۱- څېزتوم + اوسترېل + بېلښتي کړ: لاس ته راوړل، لاس ته راوستل.

## ٤- ترښتي (ترکیبي) کړ:

چې له څو ېر څو کړ سره یې په رغاونه کې تو پیر دا دی چې دلته مله یا یو ځای شوي توکونه سره یو ځای نه جلا کېد ونکي یو والی منځ ته راوړي. په دې مانا چې مخني توکونه یې خپل څ او اوړوني تا ړي او له دې سره مانیزه او ګرامري خپلواکي له لاسه ورکوي او یوازې وروستنی هغه یې د ګرد ترنګ په سکا رند وي یو غښتلی څ او اوړوني ښې ښباني ځان ته اخلي. البته مخني توکونه یې یا له اره نا وړ یدونکي وي (اکمآرکړ ولونه) او یا یې په هغه ترنګ کې خپله اړوني او ګرامري جوله او چا روما نا له لاسه ورکړې وي.

ترښتي کړهم لکه (د خوا پر خوا) کړغونډې زیاتره په ګـړ نـو (اید یموټیف) اړه لري، لکه په دې بېلګو کې:

څیز نوم + مرستیال کړ: زړه کېدل (میل درلودل)، یا ښکاره کېدل - کول
غلا کېدل - کول.

(څنګ پر مرستیال کړ) که نه پر خوا پر خوا کړیلین بي.

څیز نوم + مرستیال کړ: زړه کول (جرئت کول).

څیز نوم + مرستیال کړ: تږه کول (غیرت یا میړانه کول).

ترښتي څیز نوم + مرستیال کړ: زړه نازړه کېدل (تکنی یا مترددکېدل)

بیا ځلي څیز نوم + مرستیال کړ: سترګې سترګې کېدل (انتظار ایستل)

برخه برخه، ټوټه ټوټه، ونډه ونډه کېدل یا کول....

ستاینوم + مرستیال کړ: لوده، شوده، بدمرغه... کېدل یا کول.

بیا ځلي ستاینوم + مرستیال کړ: لوده لوده، شوده شوده ....
کېدل یا کول.

بیا ځلي کړول + مرستیال کړ: پورته پورته، ښکته ښکته،
وروسته وروسته کېدل یا کول....

څیز نوم + آرکړ: پښه نیول، لاس اخیستل، سر خوږول،
ځان پېژندل، ځان وهل، ځان وژل، ځان ژوبلول او داسې
نور ټول منځوال کړونه له آره ترښتي کړونه بېژني.

# ۲-۳۱: کراوونه

۱- کرښه راز ګرځي، ښه او ښکته څرګند وبه کوي؟
۲- مصد رله کرسره څه اړیکي لري او دغه نوبونه (اصطلاح)
دڅه لپاره کارول کېږي او کارول کېږي؟
۳- د یو کر بنسټ او اساس څه شی دی او په څه نامه یادېږي؟
٤- یو او یون موندلی کر څو مره توکونه او چارونه درلودای شي؟
۵- مهال پرڅو ډوله دی؟
٦- کر نو ډی څه ته وایي او پرڅو ډوله دی؟
۷- وګړی او ګڼه سره څه توپیر لري؟
۸- چار روال، بیچار، او مځوال کر په یو یو ساري (مثال) راوپېژنئ؟
۹- کر نوم یا حاصل مصدر څه ته وایي او څه ډول جوړېدای شي؟
۱۰- توانې کرښنګه جوړېږي؟
۱۱- بشپړ (مطلق) او نابشپړ (غیر مطلق) کرسره څه توپیر لري؟
۱۲- لر او لنډ کر په یو یو ساري راوښیاست؟
۱۳- کوزاتیف یا لېږند چار کرښه ته وایي له یو ساري سره
یې وښیاست؟
١٤- کړ ول څه ته وایي؟

# دوهمه برخه:

## ٢-٤٣: ناوړېدونکي ګړونې INDECLINABLE MORPHEMES

دګړپوهنې (مورفولوژۍ) په تېره برخه کې مو له نومونو او کړونو څخه خبرې
وکړې او په هغه ترڅ کې مو د هغو ړولونه او اړوونه (ګړانونه) وښوول؛
په دې برخه کې غواړو د ګړونو (مورفيمونو) يوه بله دوهمه ډله تر کتنې،
(لاندې) نيسو. د دې ډلې ځانګړتيا (خاصه) دا ده چې د تېرې ډلې
(نومونو او کړونو) په توپير ځانګړنه کومه ازاده وينه (لغوي)
مانا نه لري، بلکې له خپلواکو ګړونو (نومونو او کړونو) سره
يې چار او مانا جوتېږي او له کړولونو (قيدونو) پرته د غونډلې
(جملې) له مرستيالو توکو څخه ګڼل کېږي.
کړولونه يا له نومونو او کړونو سره له اړوو يا ازادو ګړونو (مورفيمونو)
ډله جوړوي.

ناوړېدونې ګړونه په دې ورووسته توګه بېلابېلې توټې (کټګورۍ) او ډولونه جوړوي:

## ۲-۴۴: لومړی - کړولونه یا قیدونه (ADVERBS):

کړولونه هغه ژبنۍ توکونه دي چې د یوه کړ د پېښېدنې څرنګوالی ښيي، دا څرنګوالی د کړ د پېښېدو لوځای یا مهال تاکي او یا یې څرګندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړتیاوې (خصوصیات) سبکاره کوي.
په پښتو کې آر کړولونه ناوړېدونې دي. نا آر، لکه: ځینو نومونه او ستاینومونه چې په څرمه ډول د کړولونو په توګه کاروکېږي.
البته ناوړېدونې نه بللکېږي. په ټولېز ډول کړولونه دا ورووسته ویشنه لري:

۱- مهالي کړول: چې د مهال له مخې د یوه کړ پېښېدنه اغېزمنوي، لکه:
اوس، وروسته، مخکې، د مخه، پخوا، وړاندې، سمدلاسه، سملاسي، په سرکې، په پیل کې، په پای کې، پای ته، بېرته، سرته، ژر، ورو، ګړندې، ځنډیا په ځنډ، بې ځنډه په بېړه، په تلوار، په چټکه، په چابکۍ، ورمه ورځ، ورمه شپه، پرون، پرون ورځ، پرون شپه، نن، نن ورځ، نن شپه، نن ګهیځ، نن غرمه، نن ماښام... سبا،

سباته، بل‌سبا، بل‌سباته، ګهیځ، سهار، غرمه، ماسپښین، مازیګر (مازیګر چیرې وې لوی مه‌شې ماپه‌ښځې کې ښنه بادرنګ راوړې وونه)،
دوخته، ناوخته، لمرخاته، لمرپرېواته، سږکال، پروسږکال، وړم‌کال، لاوړم‌کال، (نن) کال‌ته، بل‌کال‌ته، ترڅو یاڅو، په ځغاسته، په‌منډه، د منډې له‌مخې، د ولاړې له‌مخې او داسې نور آن او نان کړولونه.

بیاځلي (تکراري) لکه: ژر ژر، اوس اوس، لنډه پر لنډه یا لنډ پرلنډه، لاس پرلاس....

## ۲- ځایي (مکاني) کړول: چې د یو کړ پېښېدنه د ځای او چاپېریال له‌مخې (کوټي) لکه:

دلته، هلته، دلې، هلې، دورې، هورې، مخکې، وروسته، شاته، مخ‌ته، پرته، وړاندې، لرې، نژدې... (دغه‌راز کړولونه زیاتره مهالي او ځایي دواړه کارورکوي، یا په بله وینا هم مهالي او هم ځایي دي) کښته، پورته، لاندې، باندې، دننه، دباندې، اخوا دېخوا، له‌لرې‌له نژدې، له وراندې یاله وړاندې، مخامخ، ښي‌شا، مخ پورته، مخ کښته، مخ پر وړاندې، مخ پر شا، ستوني ستغ یا ستوني ستاخ، سر په ځغو، ځای پر ځای، لور دلوره، لوراـلور، کوراکور... او داسې نور آن او نا آن یا ساده او ترښتي ځایي کړولونه.

## ۳- ښرګندنې او ښیګارې کړولونه:

ښرګنتیا یا ښیګارښتي، حالت، ښرګندنیا
چې دیوه کړ د پېښېدنې
لګـــه:
دانګ پیلي (ویل) په ډاګ یا په ډاګـه، په ښغـرده، په خرګند،، په غلا، په زـیار، په خوارۍ، سکاره، په پټه، په زور یا په زوره، په خوله، په وېره، په میړانـه، په نره، په مړو (اوار)، په وړو یا په وړو، په خوښه، ستر ګو، په جګه یا هسکه غاړه، په ټیټو ستر ګو، (کول- ویل) زړه ښا ښه، په ټینګه، په کلکـه، په ملاسته، په منډه، په ولاړه، په ناسته، په هره توګــه، په هر ډول، زانو، هر و مرو، په اوږدو، خوشي په خوښي، هیڅ په هیڅه یا هیڅ په هیڅ، ښه نا ښه، لږ و ډېر.....
په لنډه، یا په ساره، (وژړل) په غاړه بر رسی بر خوله واښه، یا داوږد و ګړنو په بښه لکه:.....

## ۴۲: دویم - وییکي (ادوات PARTICLES)[1]:

دا هم د ناورېدونکو یا ازادو ګړونو (مورفیمونو) یوه غوره برخه ده او بېلګې یې په دې وروسته ډول دي:

### ۱- اړیکوییکي (ارتباطي ادات CONJUNCTIONS):

چې د څومره والي او څرنګوالي یا ورته والي له مخې سره اړې او څرمه غونډلې (جملې) سنبالوي او په دې توګه دوه دوه سره غاړه کېږي. چې له لومړکه سره یې زیاتره (چې) هم ملګرې کېږي، که څه هم (چې) پخپله ځانته یو اړیکونځری هم دی. او په ګڼه د نورو توتو یا غونډلو اړیکي، ټینګوي لکه، څومره، او هومره په دې غبرګه غونډله کې:

څومره د یګ هومره تېږ. نورې داسې جوړې، لکه: څنګه چې - هسې، که څه هم - بیا هم، څومره چې - هومره یا هماغومره، چېرې - هلته (چېرې دې سره هلته دې شپه)، هسې، داسې، همداسې، همدا راز، همغسې، همدارنګه، هماغسې یا همهغسې، خو، مګر، همدارنګه، په همدې ډول، په همدې راز، چې، نو . . . په کندهاري ګړدود کې "څکه" هم د "څنګه" پر ځای کاروي، لکه چې وایي:

څکه چې ناروغ وم، نو د رملې وخوړل. "که"، بیا په اړیکوونو کې یو اړ وییکی دی چې د دوو غونډلو ترمنځ یو اړ (شرط)،

(۱) زیار، وییپوهنه، ۲۴مخ.

تینګوي، لکه : که ته راشې، نو زه به هم راشم.

## ۲- ورته یا تشبیهي ویکي :

چې په دوو دینګرامرلي ادبي فنونوکې یې (حروف تشبیه) بولي همغه ویکي دي چې د دوو یا زیاتو څیزونو یا پدیدو ورته والی او مشابهت ښيي، لکه :

لکه، غوندې، په څېر، په رنګ، په شان، په دود، په لوګه، په دول، په راز....

## ۳- تړویکي (دعطف توري) :

چې دوه توکونه (ویي) یا غونډلې سره ملګرې کوي، لکه :
او، و، که، یا، سره، په دې بېلګو کې :

باغ وای د ګلونو یکې ناست وای زه او ته.

«و» او «او» سره هم مانیز دي او یوازې غږیز (فونولوژیکي) توپیر سره لري. همدغه «او» دی چې په زیاته کاریدنه پر «و» اوړي لکه : مور و پلار، خور و ورور، مګر که له خپلو اکپای ویې سره بل ویې نښلکیږي نو په آره بڼه راځي، لکه : کاکا او ماما....
بل دا چې زیاتره «او» یونځوي تړون ښيي او «و» یوازې تړون همدا رنګه «که» او «یا» هم مانیز تړویکي بللکیږي، لکه : ښه که بد، ښه یا بد. «سره» له نور و تړویکو سره دا توپیر لري چې د

ملګري او نوکوالو (ويونکو يا غوندلو) ترمنځ نه، بلکي وروسته ترې راځي او هغه سره تړي يا ملګري کوي.

## ٤- تولويکي (اضافت توري):

چې څيزونه يا پديدې سره يوله بله اړوندوي يا يو د بل تول او ملکيت کوي. په جولېزه ول پښتو يوازې يو تولويکی «د» لري، لکه:

د هلك خولۍ، د پښتو ټانګه، د اسمان ستوري ....

دا چې پښتو ټانګه يا دري ټانګه، ادبيو پوهنځی يا کابل پوهنتون بې «د» ويل کېږي، دليل يې دادی چې پهلومړيو دوو ساريو (مثالو) کې پښتو او دري د نورو ژبني نومونو غوندې دستاينومو بڼې غوره کوي او ستاينوم په پښتو کې په خپل ځېنوم پورې سيده نښلي. نور ساري يې، لکه:

افغان اولس، باختر اژانس، پښتون ځلمي او داسي نور. او ادب پوهنځی يا کابل پوهنتون د نومونو او ترکونو (ترکيبونو) په توګه د «د» غوندې يونحوي توك ته نوره اړه نلري. نور ساري يې، لکه:

طب پوهنځی، پلان وزارت، دفاع وزارت او داسي نور.

«د» د تولوالي ترڅنګه لږ و ډېر ماهالي پازه هم ترسره کوي، لکه:

د شپې، د ورځې، ... مګر د سرهل په توګه د «د» کاروونه د ليکني معياري پښتو له بنسته څخه چپه بريښي، لکه: د ځلمي سره

دکندهار څخه راغلم. همدا راز د تشبیهي ویکو (غونډې، په څېر
په رنګ...) دیوه سربل په توګه هم غاړه کېږي، لکه: د زمري
غونډې... . له «پاره» سره نن سبا دومره نه ... کېږي، بلکې
پر «له» اوښتی دی، چې اسان دول یې (لپاره) راځي او (په پاره) یې
همانېز دی.

## ۵- سربلونه (PREPOSITIONEN) او اوستربلونه (postpositionen):

سربل یا پېشینه هغه ویکی دی چې تړیو نوم دڅه راځي او په یو غونډ
(فقره) یا غونډله کې د هغه نوم پېژاو دریځ ښیي، لکه: «په» (په کور کې)،
«له»، «په» (له ښوونځي څخه) یا له ملګري سره، «تر»، «په» (تر کوره پورې)، «په»
(په تا پورې) او داسې نور و بېلګوې. په دې توګه موږ ګورو چې یو
سربل دیوه بل ویکي په ملګرتیا چې تر نوم څخه وروسته راځي، نوم
په توګ، وتوت او داسې نور و بېلګې اچوي، د غه تړنامه وروسته
ملګري ویکي یې (اوستربل) یا پسینه بلل کېږي. سره له دې چې،
سربلونه او اوستربلونه د غونډلې (جملې)، یا په بله وینا په ناخپلواکو
او مرستیالو توکو کې راځي او مانا او پانګه یې د هغو غونډو یا
کړو نو او کړولو په ګډون نه یتوب کې څرګندېدای شي، خو بیا هم
پر د غو آرو یا خپلواکو توکو یې د ول اغېز لري او د هغوی
د ریځونه او پېرونه (حالتونه) څرګندوي، نو اداره کوونکي، چلوونکي
یا واکمن توکونه هم بلل کېږي (په نحوي تجزیه کې به پرې خبرې وشي).

د دغه پورتنیو یازو او دندو له پلوه سربلونه او اوستربلونه په
دې ورستیو دولو ویشنه مومي:

۱- **په**: چې له (کې) اوستربل سره داړوند (مربوط) نوم ټوټې ظرفي حالت څرګندوي، لکه: (په ټولګي کې) له (پورې) اوستربل سره یو ځای د ول ټوټې پېر یا په بله وینا یو پیوستون ښیي، لکه: په ځان پورې، په تا پورې، ستا په خبرې پورې (بارتباط گپ شما). له «سره» اوستربل سره یوځای بنسټ (الی حالت) را ښیي، لکه: په بیاتي سره، په چېرې سره، په وینا سره، په زور سره، په خوښۍ سره. له «پسې» اوستربل سره یوځای راز ټوټې یا پرله پسې والی څرګندوي لکه: په تاپسې، په سختۍ پسې اسانۍ راځي، په څومي پسې پسرلی دی، لکه په پورتنیو بېلګو کې چې لیدل کېږي. کله کله ترې ملګری اوستربل لوېدای هم شي، لکه: په خوښه که په زور وي له مظلوم به د ظالم لاس لنډ نږي، په تا اړه نلري (په تا پورې اړه نلري)، په لیکانې لیک کېږي (په لیکانې سره لیک کېږي). مګر (په کور) له (په کور کې) سره یو راز نه دی، ځکه (په کور) له آره (پر کور) دی چې ظرفي نه بلکې استعلایي ماناښندي. همدا راز په وخت په کال، په مازیګر، په بجو... د پر وخت، پر کال، پر مازیګر، پر بجو... ناسم یا ناکره بڼې دي. همدا خبره د هغو چې مو (په پښتو لیکل) او (پر پښتو لیکل) سره توپیر وو.

۲- **پر**: یو باندېنی (استعلایي) ویپکی دی چې یو اړوند اوستربل

«باندې» يې زياتره غور ځېږي، لکه: پرمېز باندې يا پر مېز، پر ځمکه باندې يا پر ځمکه، پر ونه باندې يا پر ونه، پر سر باندې يا پر سر، پر ونه يوڅه پر خوله بل څه، پر وخت، پر کور، پر کابل، پر لسو بجو پر ۱۳۵۶ کال، او داسې نور.

«پر» هم د «په» غوندې نور يا ی نومونه زياتره پر اوښتي پېرابري. له کندهار په او تاريخي پښتو پرته نور زياتره گردونه «په» او «پر» سره گډوي، پر يوه وخت يا دواړه په الي، ارتباطي او تسلسلي مانا کاروي، په بله وينا دواړه د «په» يا زه پر ځای کوي او يا دواړه استعلايي مانا يا په بله ژبه دواړه د «پر» د نده ترسره کوي، لکه: د (په پښتو-ليکل) او (پر پښتو ليکل) بېلگې چې د «په» په برخه کې راوړل شوې. په يوه کره ليکنۍ پښتو کې د دغه دواړو سربلونو توپير ضروري دی. يو ژبنی آرهم دادی چې دوه توکونه يا دوه دوونه په تاريخي او اتمولوژيک ډول هيڅکله همانيز او همپايز نه وي. د همدغه آر په ترڅ کې سپمايي آرهم بسمبالېږي. که په گړنۍ ژبه کې دغه آر نه دومره پر ځای هم نشي، مگر په ليکنۍ ژبه کې ځوا خېز گټور نقش لري.

نو پر يانه گډون، کارونه او سپما د نړۍ د هرې ژبې بهتر جوړوي، په دې توگه په کاردي (په پښتو ليکل) داسې مانا، کړو چې يو څه په پښتو ژبه ليکل کېږي، نه په بله ژبه. (پر پښتو ليکل)، دا مانا چې د پښتو په باره کې څه ليکل کېږي

نه د بلې ژبې یا بلې موضوع په باب. همدا رنګه (پرکابل او سپړم)
دا مانا چې د کابل سپاره په مشا وخوځېږم او (په کابل کې او سپړم)
دا چې د ننه په کابل یا کابل سپار کې.

په پارسي کې هم د «به» او «بر» لقبیي په نامه ادب او اوسني
ایراني ادب او لیکنه کې پوره څرګند دي. د «پر» بل اوستربل
«سربېره» دی چې ناکره د ول یې «برسېره» هم لرو د بیعد
لري. د غه اوستربل هیڅکله نه غورځول کېږي، که نه مانایې
له «باندې» سره ګډېږي او یو کېږي.

«پر» د ویکسنو مخرجي (اداتي ضمیر) «پرې» پر ځای کارول کېږي چې
په کندهاري ګړدود اړه لري هم د یادو شویو ژبنیو ارزونو
له مخې په تولیزه لیکنۍ پښتو کې د منلو ور نه بریښي. همدا شان
«تر» او «په» هم د رواخله چې له «ترې» او «پې» یا «پرې»
سره ګډول یې ګډوډي ښوي.

۳- **تر:** چې د «پر» بل (مقابل) سربل دی، هغه دا چې «تر»
هر څه د مخه د «پر» غوندې د «باندې» نه چې د لاندې، مانا
ښندي، له دې کبله یې لومړی اوستربل «لاندې» دی چې،
هیڅکله غورځېدنه نه منې، لکه: (ترمېز لاندې) چې «ترمېز» بیا
ګرد. سره بله مانا ښندې او هغه تونې او مهالي پیوستون دی
لکه: ترننګرهاره، ترمازیګره چې اوستربل یې پورې یې هرومرو ملتیا
نکوي. درېیم اوستربل یې «وروسته» یا «اوروسته» کړول دی،

لکه ترغرمي وروسته یا ترغرمي راوروسته، ترخلمي را وروسته زما نماوار دی ... له څلورم او ستربل څخه (ځنی - نه) سره پرتلیز حالت ښندي، لکه ترتا څخه زه ښه یم چې د دغه او ستربل په عوض ځینو (تر تا) هم سم راځي. د دې پرځای چې د نوړو ثبوپه پېښېو - سږني کال د پروسږ کال په نسبت د پروړندی (بارنده) دی، ووایو سږنی - کال تر پروسږ کال د پروړندی دی) لنډا وکره راځي. «تر» په دغه پرتلیزه (نسبی یا تدریجي) مانا له «له» سره بل سره همما نیږدې کیږي؛ خو داچې (له - څخه) ترهرڅه څخه و نوټن پېر (منشائي) حالت څرګندوي نو یې بیا هم له (تر - څخه) سره یې ګډول په کار نه دي یا لږ تر لږه (ترتا ځنی) وکارول شي. له نورو لوییکي (اضافت نوری) «د» سره یې ځینې ول بې ځایه دي، لکه، ننګرهاریان چې وایي؛ دکوره په سار اخوښ یم - د ویشه په تالا. خو داچې په ګېډه کړه لیکنی پښتو کې د لته د پرتلې مانا موخه (مطلوب) ده، نو (تر کوره پز سار اخوښ یم - تر ویشه پر تالا) ته ړې سم بر ښېي او (له کوره پر سار اخوښ یم - له ویشه پر تالا) دومره تمیک او غوره نه راځي.

دغه راز په ختیزو ګډو ودوکي د «په»، «تر»، «له» پرځای هم زیاتره «د» کارول کېږي چې دا هم له ثبتولو معیاري آر ولو څخه چپ بلل کېږي لکه د خلمي پسې - د ننګرهار پوري، د میږ لاندې، د ننګرهار نه، د خلمي سره د کندهاره راغلم، د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې د خوا، د تا نه یا ستا نه زه ښه یم ... کره یې وایي؛ په خلمي پسې، تر ننګرهار پورې، تر میږ لاندې، له ننګرهاره، له خلمي سره له کندهاره راغلم، د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې له خوا، تر تا (څخه) زه ښه یم ....

«له» چې له (څخه، نه یا ځنې) او ستربل سره له آره د یو نوم

(ودوتن پیر) یا منشأیي حالت څرګندوي، لکه له سیستانه یاله سیستان څخه یا د سیستان نه او یاله سیستان څني. په دویمه (نسبتي) مانایي کارول دومره کره نه بریښي، لکه پاس چې ورته ګوته ونیول شوه.

«له» له دویم اوستربل (سره) سره د ملګرتیا (معیت) جاج ښندي؛ لکه: له خلمي سره ترهرات پورې ملګری وم او داسې نور. په دغه مانایي اوستربل (سره) پر (څخه یا څه) اړول له ګرهي کره لیکنې پښتو څخه چپ بریښي، په بله وینا باید (له خلمي سره) او (له خلمي څخه) په یوه مانا ونه کارول شي. دریم اوستربل یې (وروسته) دی چې مهالي او توني کړول (قید) ورسره جوړوي او له (تر) سره یې یو ځای کیږي، لکه له غرمې وروسته کورته ځم چې البته (ترغرمې وروسته (ترې) زیاتوالی ښیي، په بله وینا (وروسته) د «له» نه بلکې د «تر» معیاري اوستربل دی.

څلورم اوستربل یې «راهیسې» دی چې یو مهالي کړول ورسره جوړوي، لکه: له پرون ګال راهیسې، له ډېر وکلو راهیسې له پخوا راهیسې .... په دې ټوګه «راهیسې» دیوه اوستربل په توګه باید په (نوم) سیده ونښلول شي او بل کوم زیاتي اوستربل یا بل ژبني توک ترې د مخه نشي، په بله وینا (له ډېرو کلو څخه راهیسې) نه بلکې (له ډېرو کلو راهیسې) وویل شي. (د ډېرو کلو را په دې خوا) هم مانیز اړول دی خو پارسي (از سالها باینطرف)

نکي پر تکي ایږونه ده او دوېره رواني او لنډون هم نلري. د «له» پنځم اوسترېل «پرته» دی چې د «سره» بل او مقابل جاج ښندي، د اما تا چې د ایږوند نوم ملګرتیا نه چې بېلتیا او نشتوالی څرګندوي. لکه:
له بلبلیو پرته نابللي هم راغلي وو.

۵- «بې» : چې زیاتره د «نا» غونډېږ یوستاپسوېږ (صفتي مختاړي) دی، لکه: بې کوره، خولږ، وېره سرېلي ځانګړتیا هم لري او هغه هم زیاتره د «له» په ملګرتیا او دیوا ځیني اوسترېل (څخه، نه یا ځنی) په د رلوډلو، لکه بې له تا څخه، بې له هغه څخه. چې بې له تا او بې له هغه هم ویلکېږي، مګر (بې تا) ویلکېږي او (بې هغه).

۶- «و» : یو پښواني سربل دی چې «له ته» اوسترېل سره ورته لوبېږ (مفعول له حالت) څرګندوي چې پښواني څرګېږي په لویدیز و - (کندهاري) ګړ د ودوکې پاتي دی او نور و پښتو لو ګړ دوډوله لاسه ورکړی او د هغه اوسترېل «ته» یو ستوی کار روي. لکه:
و تاته وایم، و سپږ ونځي ته ځم....
د پښتني دوره شاعرانو هم په ډېر کار ولی او لا کله یې د ویم ځلي ترنوم وروستـه هم را وړي او د اوسترېل «ته» سره بیا هم پټلیز (جوخت) نښـ ولی، لکه رحمان بابا چې وایي:
خدایـ و ماو ته سنګاره کړې هغه لمر بیا.
هغو بیا نیارسي «به» غونډېږ بې اوسترېلـه هم کار ولی دی،

لکه پیر محمد کاکړ چې ویلي دي:
سوز گداز د محبت مستي مارا. په هره توگه د ویوکو د ډېر ښت په لاسوندنو (و-ته)، (ته) زیات معیاري او زښت لږ
۷- «ډ»: که څه هم په ټولینې ډول یو ټولیزیکی دی، خو، له (غونډیزې) او داسې نورو تشبیهي او توني ویکو سره د سریل په توگه هم راځي خو بیا هم د ټولوالي ځانگړتیا بښي، لکه: د ځلمي غونډۍ، په رنگ، په څېر، په ډ ول، په راز، په توگه، لیاره، د کور د ننه، د کور د باندې، چې ترکور د ننه، تر کور د باندې، بله مانا ورکوي، چاپېر، چارچاپېر یا گرد چاپېر، تاوراتاو، کښته، پورته، پاس ... هم د «تر» او ستربلونه دي.
پرېپور تنیو ویکوسره بېره ځینې نور راز راز ویکي هم شته چې په غونډله کې بېلابېلې پازې لري. په دوی کې د ځینو پازې صرفي بللکېږي او د ځینو نحوي او د ځینو د واړه وله. صرفي لکه «به»، چې د نابشپړ او ناخبري (لکه گومانې)، او اوسترمهال کړ یو ټوک جوړوي یا «نه» او «مه»، چې کړ نفي او نهي کوي. یا «که»، چې آړ ویکی دی، غونډله پوهېز یا نحوي، لکه «نه» د منفي ځواب په توگه «سره» په صرفي ډول، لکه: سره تلل سپه نحوي ډول یا په بله وینا د او ستریل په توگه، لکه: له ځلمي سره ولاړ - «بیا»، د کړوول او هم د اړیکویکي په توگه. کورته، بېځي، چېرته، هلته، سوچ، چېرلته، ورته، بهضوره، لا، ان، هن، ایله،

په منتې یا منتې .... د مرستیالکړو لیږنو په توګه، و، یه، یا، آ، او ای د بلن ویېکو په توګه؛ «ایا» د پوښتېیکي په توګه؛ پارېیکي لکه اخ، اوخ، وش، او، آه ... چې د ناڅاپي خوښي یا وېرې او داسې نورو هیجانونو (پاریدنو) څرګند وونه کوي چې تر آر واو مرستیالو توکونو و روسته د غونډلې د توکونو د ریمه پله جوړګړ او پخپل ځای ځېرل کیږي.

## ۴۳-۳: وینا واښتي:

وینا واښتي یا تکیه کلامونه، لکه: ماسکه، غوله یا غولې، مرا یا مرې، غوټې، چې دی ... کاکا ګورې هماګورې ... هم لن وېږ په یو ستوا و ترښتې ویېکوکې راځي چې د پاریلن ویېکو یا پاریېکو غونډې د توموني پاره نه پر ځای کوي، بلکې راز راز ننګیرني (احساسات) څرګند وي.

## ۲-۲۴: د پښتو ګړونو (مورفيمونو) د ډلبندۍ انځورليك



## ۲-۴۵: کړاوونه (تمرینونه)

۱- سربل څه ته وایي او وستربل څه مانا؟
۲- پښتو ټول څو سربلونه او وستربلونه لري او هغه کوم دي؟
۳- د دې لاندې غونډلو تش ځایونه په سمو سربلونو او وستربلونو ډک کړئ!

... کابل کې د ژمي ډېر ساړه وي؛ ... زړه به دې یوه وي، د رېښه
په شي بلسه؛ زه... لیکاني سره لیکل کوم، ز... انګلیسي ... روسي ښه
غږېدای شم؛ کوچیان داوړي ... کابل وي او د ژمي ... ننګرهار
... اوسي؛ زما په کالیو ... مه خانده! سپین ... تور او ښتل یا بدل؛
اوبه ... ډانګ ببلول؛ ... زده کړې پسې ملاوتړه! په تا ...
ا ره تلري؛ زه کور ... پنځو بجو ځم؛ ... غره باندې واوره
اوري؛ ... ډېوې لاندې تیاره ده؛ ځلمي سربېره زمری هم
راغی؛ ... ځلمي پرته نور ټول ولاړل؛ ... ټوکې د ننه؛ ...
ټوکي د باندې، سپوږمۍ ... منځ د اسمان رلغاسه، یا خو خوب
نشته یا خو ما ... نه راځینه؛ که غم ... شرمېدلی، ... ما یه
نه راتلای ځولۍ ځولۍ غموونه؛ ... تور ټوپک ویشتلی راځي؛
د بې ننګۍ او از دي راځه مینه! دیار ... پاره د ژمسال چارکومه؛
... ګودر سور سالو ښکاره شو، اشنا مې سر ... وطن کېښود، ...
تار د زلفو به کفن ورته ګنډمه؛ که زما عمر ضروري وي تېر به شینه؛

... لوی غرور د خدای نظر دي، ... سپین واړه ورځي چاپیر گلونه، که لاړ
شي ... بلخه، د رسره ده خپله برخه، گلاب ... اصله شاهزاده
دی، رامبېل چامبېل یې اردلیان ورسره ځینه، ... گودرځه
کانه راوشوه، چې کشره خوریې ورسره گودر ... ځینه ما
... په سر و زړو منظور دی، که د جانان ... لاسه خاورې
ایرې وینه، خپه پرې نه یم ... جانان سره به یمه، ... خمارو
سترگو دې جار شم، چې ... ژړاشي مرغلرې توی وینه، ...
وچه داگه د لرنگـو بوی راځینه، زمـا ... تشه
خنـد امسـته، مـا یـه جانـان ... لاس نیولی
گـرځونه، کـه شینکی خال مې د چېرو ... خوکـو
ځینه، چې ... سنگره پـورې ره د رسره ځمـه، سپوږمۍ
... دې څه احسان دی، زمـا جانان ... دیوالـه
سیورې نه ځینه .

# دريم څپرکی

## ۳-۱: غونډله پوهه (نحو SYNTAX)

لکه څنګه چې د غږ پوهې د ويينې يو وړ (دبحث واحد) غږ دی او د ګړپوهې هغه ګړدی. نو د غونډله پوهې د ويينې يو وړ غونډله (جمله) ده. په بله وينا غونډله پوهه د غونډله لو، دغه راز د غونډو و تو (فقرو) او ګړ توراو (اوډونو) د جوړښت، اوډو ولونه ترکيبونو او ويينې لاندې نيسي.

## ۳-۲: غونډله (جمله):

غونډله د ګړو توراو ويينو يو داسې اوډلې غونډ (کل) دی چې يو بشپړ جاج (مفهوم) او موخه (مطلب) پرې پوهول کېږي. له بله پلوه دا چې خبرې يا وينا په غونډلو کېږي او بې غونډلو خبرې او وينا نه ترسره کېږي، نو داسې يې هم پېژندلای شو: غونډله د خبرو، وينا

یا ګړ هارهغه بشپړه خپلواکه ناشونې رغاونه ده چې ترې پلـه ستره رغاونه نشته، په پلـه وینا : غونډله د خبرو او وینا تر ټولو کوچنۍ (واحد) دی.

## ۳-۳-۲: دغونډلې جوړښت :

غونډله لومړی پر دوو برخو یا غونډ ونو (فقرو یا ګروپونو) وېشل کېږي چې یوه ته نومـوال (اسمي) او بل ته کړوال (فعلي) غونډ وایي. د یازې له مخې نومـوال غونډ ته اېښی (مسند الیه) او مبتدا، او کړوال غونډ ته اېښوونی (مسند) یا خبر هم ویل کېږي. په اېښي کې یا کړ پنډ له له خپلو اړوندو سره راځي (که په چاروال کړاوه ولري) او یا کړی له خپلو اړوند وسره (که په بې چار کړاوه ولري). په اېښوونې کې کړ او کړی دواړه له خپلو اړوندو سره راځي، په دې اړ (شرط) چې کړ چاروال لېږندوي، که نه یوازې کړ له خپلو اړوندو سره راځي.

د کړپنډ او کړي اړوندونه ستاینوم، شمېرنوم، تړلنوم (مضاف الیه) تولوېیکي، پېژندوېیکي او داسې نور ضروري وییکي کېدای شي او د کړ هغه کړولونه (قید ونه). په دې توګه تول اوړه یا خپلواك (ازاد) او نا خپلواك با... ماورید ونې ګړونه او توکونه په یوه غونډه له کې راغونډ پدای ... ي او د هغو توکونو په کموالي او زیاتوالي سره ورې یالوېږ ... نډلي هیڅ نه راځي.

د یوې غونډلې د شتوالي لپاره کې اړ یا بنیادي توك ګردان شوی کړ دی. که هر څومره ثبې توکونه سره لري شي او کړ نه وي نه لري.

غونډله جوړولی شي او په سرچپه ډول پخپله ګرډان شوی کړ د
یوې غونډلې لړه کې اندازه ده لکه: خوږم، څېنم، څم او داسې نور.
څېنې نادوې او یا غیر عادي غونډلې چې کړیې غږیږي او بیا هم غونډلې
بللکیږي، هغه بلن غونډلې یا ندائیه غونډلې دي، لکه:
یه پښتیانا! یه ځلمیه! دغه راز، هو، نه، سبه، څنګه
ولې او داسې نور پوښتنوړځري هم نیمګړې یا لنډکړشوې غونډلې
دي، هغه هم د خبرو اترو او دیالوګ په ډول لکه چې یو وایي:
ته ناروغ یې. بل یې داسې ځواب وایي: هو، نه، ولې څنګه؟
او داسې نور.

اوس د یوې پوره ساده غونډلې څو بېلګې وړاندې کوو:

۱- ځلمي راغی
ایښی ایښونی

۲- د ځلمي ورور راغی
ایښی ایښونی

۳- د ځلمي مشر ورور راغی
ایښی ایښونی

٤- د ځلمي یو ورور نن له کندهاره کابل ته راغی
ایښی ایښونی

۵- ځلمی لیک کاږي
ایښی ایښونی

٦- یوهلك      یولیك کاږي
ایښی      ایښوني

٧- یولیك      کښل کېږي
ایښی      ایښوني

په لومړۍ غونډله کې هم ایښی (مسند الیه) له یو ساده کړنځه جوړ دی او هم ایښوني له یو ساده کړنځه. په دویمه غونډله کې ایښی له داسې کړنډ (ورور) څخه جوړ دی چې (ځلمی) ورسره د تړلنوم (مضاف الیه) او (د) ورسره د تړلوییکي په توګه اړوند (متعلق) بلل کېږي. خو ایښوني لا هماغسې یوستوی کړه (راغی) دی.

د دریمې غونډلې د ایښي کړ (ورور) یوستاینوم (مش)، یو تړلنوم (ځلمی) او یو تړلوییکي «د» دخپلو اړوندونو په توګه له ځان سره ملګري کړي او په ایښوني کې کړ (راغی) له ځان سره یو هالي کړول «نن» او یو تړنې کړول یا په بله ژبه مفعول له (کابل ته) دخپلو اړوندونو په توګه ملګري کړي دي.

د څلورمې غونډلې په ایښي کې کړنډ (ورور) له ځان سره یو پېژند (یو، د حرف تعریف)، ځلمی د تړلنوم او (د) د تړلوییکي په توګه ملګري کړي او په ایښوني کې یې کړ (راغی) یو هالي کړول «نن» او دوه تړنې کړولونه (له کندهاره څخه) او (کابل ته) په خپلې اړوندیه کې لري. د لومړي تړنې کړول په د روتوکو نوکي (کندز) د سرېل او اوستربل (له، څخه) په ملتیا و تړنپېر (مفعول منه حالت)

موندلی دی او په دويم توګه کې کموول کې (کابل، داو ستړبل (ته) په ملتيا ورتلوښيږ (مفعول له حالت).

سر له پنځمي څخه د پورتنيو څلورو غوندلو پر خلاف د نا لېږند (لازمي) کرڅای لېږند (متعدي) کرېږي او په دې توګه يې کړی (مفعول) ته اړتيا پيدا شوی ده. د پنځمي په اېښې کې کرند (خلمی) يوستوی راغلی دی او اېښوني کې يې کړ (کابږي) له کړي (مفعول) سره ملګری شوی او په شپږمه کې اېښې د تولنوم (عام اسم) په توګه له (هلک)، سره د پېژندنې او تړاکنې لپاره ورسره پېژند (يو) هم ملګری کړی دی او هدا ارن د اېښوتي له کړي (ليک) سره هم يو پېژنده دلوړي پېژند پر ځای بل دول پېژند (څوک يا کوم) او د دويم پېژند پر ځای بل پېژند (کوم) هم راتلای شي په بلــه وينا (يو هلک يو ليک کاږي)، (څوک يا کوم هلک کوم ليک کاږي) سره څومره پېژ او ځرنګين (کمی او کيفي) توپېرنلري.

او ومه غوندله له بيا د پنځمي او شپږمې غوندلې غوندلې چارول لېږند کړ نه، بلکې بېچار لېږند کړلي. په دې توګه يې کړی (ليک) له خپل پېژند (يو) سره اېښې جوړوي او (کنبل کيږي) د يو ترښتي کړ په توګه اېښوتی. دغه راز کړی (ليک)، چې د کرند ځای نيسي او کړ ورپورې اړه (اسناد) پيدا کوي، نو په دوديزه نوموونه يې (نايب فاعل) بولي.

دا دی د پورته څرګندتیا لپاره د څو بېلګو غونډلو انځورلیک (ګراف) وړاندې کوو:

۲-۳-۱: نالېږدنده غونډله:




۲-۳-۲: چاروالې لېږدنده غونډله:



۱-۳-۲-۴- بېچاره لېږندګه غونډله:




## ۳-۴: د غونډلې رغنده توکونه:

پاس مو پر دوو برخو (اینسي او اینبوني) د غونډلې وېشنه وکړه، دلته غواړو، په ټولیزه ول یې ټول رغنده توکونه ترکتنې لاندې ونیسو او د هغوی د خومره والي له مخې د غونډلې جوړېز (شکلي) ډولونه و نوموو. دغه توکونه ټول ازاد یا خپلواک ګړونه او له ناخپلواکو یا تړلیو ګړونو څخه یوازې ویکي رانخلي. البته تاړې د ازاد ګړونو د نه جلا کېدونکو توکونو (اجزاوو) په توګه د غونډلې سیده توکونه (عناصر) نه بلل کېږي، په دې توګه یې که ازاد توکونه او ړون موندلي، بیا سبنتي (اشتقاقي) او ترسبتي (ترکیبي) هم وي، د غونډله

پوهې (نحوې)، له پلوه بيا هم دشننې وړ نه دي، بلکې هر يو د غونډ لې يو يوازينی توك (جزء) يا توك (عنصر) او يا يو ون (واحد) گڼل کيږي لکه: خوږم، خوږو، خوږلی، خوږونکی، خوږل، وگوم، ورکوو، ورکړي، ورکوونکی، ورکول ... زمري کيدل، کول. لاس ته راوړل او داسې نور. د ساري په توگه (زه خپلو شاگردانو ته په درنه سترگه گورم).

غونډله په نحوې ډول اته توکيزه بلل کيږي چې څلوريې (زه، ته په سترگه)، ساده توکونه (گړونه يا ويپونه) دي او څلوريې — (خپلو، شاگردانو، درنه، گورم) داوړونې (تصريفي) تاړويه درلود لو سره اوړوني توکونه (گړونه يا ويپونه) دي. يا (ځلمي، يو، كتاب، لوسه کړ دی)، په غونډله پوهيز ډول يو پنځه توكيزه غونډله ده چې يې (ځلمي، يو، كتاب، دی) ساده توکونه (گړونه يا ويپونه) دي او (لوسه کړی) يو ترمښتي توك يا گړاو يا ويی دی، ځکه له شننې سره يې او سنې يوازينی مانا له منځه ځي او ترمښتي جاج له لاسه ورکوي.

د غونډلې توکونه په لاندې ډول د لبندې کيږي:

۳-٤-۱: آر يا خپلواك توکونه: چې توك ازاد گړونه راخلي. نوموونه (ځينونوموونه، ستاينوموونه، شمير نوموونه، نوځري)، گړونه آر، مرستيال يا ساده، بيلبنتي، خوابرخوا، ترمښتي) او گړولوته (آن او نا آر) دي.

۳-٤-۲: مرستيال توکونه: چې په دوی کې ناوړېدونې گړونه (ويکي) راځي. لکه: آرويکي، ترويکي، سربلونه، او ستربلونه او داسې نور.

۲-۴-۳ : په درېیمه ډله انګیوییکي، پار ویکي، بلن ویکي او داسې نور لغي لومړی ډله (آر توکونه یا خپلواک توکونه) د موضوع څرنګوالی، څومره والی چاروالی (فعالیت) او داسې نور جاجونه (مفهومونه) نوموي او یا ورته نغوته کوي، یا په بله وینا هم وییزه (لغوي) مانا سپړندي هم پښوییزه دغه ډله آروکړولو، نه پرته توک او پر یو لي ګړونه را اخلي.

دوهمه ډله مرستیال توکونه د نومونې او نغوتنې پازه، نه بلکې یوازې پښوییزه مانا او چار لري. مرستیال ورته په دې وایي چې دغونډلې آرتوکونو، غونډلو ویو او غونډلو ترمنځ اړیکې ټینګوي.

په درېیمه ډله کې (پار ویکي، بلن ویکي... ) د نومونې پازه نلري او د بېلابېلو ځانګړو شرېږ نو ځرګندونه کوي. پار ویکي لکه: د خوښۍ (ولخ، وخ، اوخ ...) یا د خپګان اندېښنې او درد (وای، وی، اه، اوه، وش، الا یا هله، آه ...) او داسې نورې هیجانې چیغې، سورې او اوازونه. بلن ویکي لکه د څارویو، ځناورو او مرغانو د بلنې او هڅونې یا رټنې او شړنې لپاره لکه: اوشه! اخه! کشي! تغه! ډ ربې! کیج کیج! کوړنې! ورکیش! پیش پیش! خنجه... خي! ځلخاك! کوړ کوړ (خروټه)، ډ یو ډیو (غوبیوته) نتحه نتحه... مګر انګیوییکي بیا د نومونې پازه ترسره کوي، لکه: بخ، بم، بو، غز، ګړ، او داسې نور بې مانا اوازونه چې د طبیعي پېښو په بهیر کې له خولې را وځي، په دوي کې ځینو د آرو ثبنیو توکونو (څیز نومونو) ارزښت هم پیدا کړی وي، لکه: درز غرز... (د غورځېدو اوازونه)، د ربد روب، ډ ب، ډ وب...

(د وهنې او اتوعنه) او داسې نور (دخپل نوم په ولونه دې هم وکتل شي) (۱).

## ۲-۵-۱: اوډون (ترتیب):

اوډون دا مانا چې په یوه غونډله کې بېلابېل یاد شوي رغنده توکونه سره څنگه اوډون مومي. مخکې موو ویل چې په لومړي دوه برخېزو کې د یوې غونډلې نوموال غونډ (اینبی یا پیل او مبتدا) د مخه او کړوال غونډ (اینبونې یا پای یا خبر) وروسته راځي، مگر په دغه هر یوه غونډ کې د بېلابېلو توکونو تاکنه او اوډ نه دهرې ځبې یوه بېلوونکې ځانگړتیا بلل کېږي.

لکه څنگه چې مو په شوتېرو بېلگه غونډلو کې څه ناڅه ولیدل چې په لومړۍ برخه (اینبې) کې کیوونا لېږ ندیا چار وال لېږ ند کم والا غونډله وي، کړ ندلا (فاعل)، ځانته یا له خپلو اړوندو توکونو سره راځي او که بېه چار کړ والا غونډله وي، کړی ځانته یا له اړوندو توکونو سره راځي او په اینبونې کې کړ که نالېږ ند او یا بېچار لېږ ند وي او نور اړوند ونه لکه: کرولونه، پېژندونکې، تولنوونه، شمېرنوموونه، او راز راز وییکي. په اینبې کې کړ ند تر ټولو اړوند وتو وروسته راځي، د کړ ند ترڅنگه د کړ ند نژدې تاکونکې، لکه: پېژند، ستاینوم، شمېرنوم، یاتولنوم او بیا دغه

(۱) لودین: دکلام د اجزاو وجوه ښت، زېرکې ۴ گڼه، کال ۱۳۵۱.

ترڅه نولوېږي راځي، لکه په دې بېلګو کې:
۱- یو سړی، راغی یا: یو سړي، ډوډۍ وخوړه.
۲- یو غښت سړی، راغی یا: یو غښت سړي ډوډۍ وخوړه.
۳- د کلي مشر ورور، ولاړ یا: د کلي مشر ورور وینا وکړه.
٤- د کلي دوه ورونه ولاړل یا: د کلي دوو ورونو ویناوې وکړې.
۵- د کلي دوه مشران ورونه ولاړل یا: د کلي دوو مشرانو ورونو ویناوې وکړې.
٦- زما یو کشر ورور کورته ولاړ یا: زما یو کشر ورور واده وکړ.
په اینبونې کې کړ (آر یا مرستیال)، تر نورو تړونکو وروسته راځي.
که دغه کړ له دوو غبرګو (آرو او یا ناآرو) کړ څخه جوړ وي، نو آر
ترڅنګه او ناآر (مرستیال) ورپسې بېځي پای ته راځي.
تر کړ (آر یا مرستیال) د مخه کړي (که کړ چار وال لېږندوي) او
کړي بیا له خپلو اړوندو نو وروسته ځای نیسي. کړول (که چېرې
وي) زیات تر کړي د مخه راځي، خو که دوه کړول په یوه اینونې
کې راغلي وي او یو مهالي او بل نو نې یابل ډول وي نو زیات تره مهالي
له نو نې یا بل کړول او کړي څخه مخکې کېږي. نو نې یا بل کړول
بیا کېدای شي، تر کړي وروسته ځای ونیسي، لکه په دې لاندې
غونډلو کې:
۱- زمري نن ازموینه ورکړه.
۲- زمري (نن) (په بریالیتوب سره) ازموینه ورکړه.
۳- زمری (نن) (له خپل ورور سره) (له کندهاره) (کابل ته) راغی.

په پاسنيو غونډلو کې (نت) (له ځيل وړ ورسره) مهالي کړول دي (په پالتو سره) او (له ځيل وړ ورسره) څرګند ني او (له کند هاره) او (کابل ته) نو ني کړولونه دي. همداراز (ازموينه) او (ځپله ازموينه) کړ ې (مفعولونه) بلل کيږي.

۲-۶: دغونډلې بشپړاند توکونه:

په غونډله کې پورتنيو نوموړو شويو توکو سره بيره ځيني بشپړاند (متمم) توکونه هم لري، لکه: ځج، اهنګ، بېلتون او پېستون او د غونډلو د پای غاړه (لحن).

د غونډلې له مخې دغه ځانګړتياوې (خصوصيات) د وينې او لاره (فونيمونه) بلل کيږي چې د لومړيو يا آرو اوازونو لکه (ا، ب، پ، ت، ټ ... ی) غونډې د ګړهاره به بهيرکې د پرله پسې پالي يا تسلل (لينيال) لوسبه نلري او دغونډله په پوهې له مخې همغسې ماني او چاريز (تعاملي يا فنکشنال) نقش او اغيز لري لکه: آرتوکونه (ګړونه) حکه دغونډلو مانيز او پښو يينز د ولونه سره نو پيږوي.

نو له دې کبله ځج، اهنګ، بېلتون او پيوستون او دغونډلو د پای غاړه (لحن)، دغونډلې بشپړاند توکونه بلل کيږي.

۱-۶-۲: اهنګ:

دغونډلو اهنګ څلور ډوله دی: خبري اهنګ، پوښتني اهنګ،

هيښني او بلني اهنګ (تعجبي او ندايي اهنګ) او امري اهنګ. په بله وينا خبري، پوښتني، هيښني او بلني او امري. غونډلې سره د ځينو ځانګړو اهنګونو په مرسته توپير ږي. (۱)

۱- د خبري غونډلې اهنګ او ر پيل کيږي او بيا غورځيدلی پروت پای ته رسيږي، لکه: زمري راغی.

۲- د پوښتني غونډلې اهنګ ټيټ پيل ږمي او بيا نيغ ختلی پروت پای ته رسي، لکه: زمري راغی؟
که په سر کې پوښتنو ږي يا پوښتوونکی راشي، بيا نو اهنګ په سر کې لوړ ږي.

۳- د هيښني، بلني، ګوماني او داسې نورو غونډلو اهنګ کابو يو ډول راځي، او هغه دا چې ټيټ پيليږي بيا پورته ځي او په پای کې بيا پای ته رسيږي لکه:
زمري راغی !

۳-۶-۲-۲، خج:
لکه څنګه چې په غږ پوهه کې ورته نغوته وشوه، غونډلې ږ

(۱) ولته له پوهاند الحاج خپه اخیستل شوی (روشنی جدید در تحقیق دستور زبان دری).

غږ هماغه پیاوړی غږ دی چې د نورو توکونو په ترڅ کې یې پر یوه ژبي او هماغه غږ بیا توکي تر نورو توکونو زیات موخن (مطلوب) بښي.
نور توکونه یا هیڅ غږ نلري او یا د هماغه یو پیاوړي غږ تر اغېز لاندې کمزوري وېل کېږي. په دې ډول د یوې رازه غونډله یېز غږونه سره نه پېرو. پیاوړي، لږ پیاوړي او کمزوري لکه د اولیږ په دې سندره کې : (ستا د سترګو بلا واخلم، بیا دې سترګې ولې سرې دي یه ولې) پیاوړي، پر (واخلم) لږ پیاوړي او پر (سترګو) کمزوري غږ اورېدل کېږي.

### ۳-۲-۳: بېلتون او پیوستون :

بېلتون او پیوستون د اما ناچې د غونډو یا غونډلو د پای وییونه سره پیوست او یې لارنجي (بې مکثه) وویل شي او یا سره ناپیوست په لارنجه (مکث). په دې توګه که کله د هماغو یو رازغونډ و یا غونډلو ترمنځ بېلتون پر پیوستون با، ل شي او یا سرچپه، نو هغه جاج او اما ناپې سره نه تو پیر بېږي چې د ویونکي موخه او مطلب وي. دا چې د غه بېلتون او پیوستون یوازې د نحوي یو ونو (احدو) ترمنځ نه بلکې د ... بن پو هیزو هغو ترمنځ هم نقش او اغېز لري، نو غږ، اهنګ او غاړې (لحن) غونډې بېلتون او پیوستون له آره د وېي اوازونه (فونیمونه) دي. بېلتون او پیوستون د لیکونکي په دې کرې (بیت) کې سپه تر اجوتېږي :
کرې که بخښش د وصل رازیاره — زه موزول پر ما ملنګ سپه دي.

دلته که (ن) له مخني ويي يا په بله وينا له مخني اواز (الف)
سره پيوست وويل شي مانايې داسې راځي چې (يه يار ه) که
ماته (دوصل راز) رابخشش کړې او که نه (ن) له (يار)
سره پتليږه و ويل شي، يا په بله ژبه، د (الف) او (ن)
ترمنځ بېلتون او لارغه را وپل شي بيا دا مانا ښندې
چې (يه زيار ه) کماته دوصل بخشش را کړې. په
تو گه چې د مخنی مانا موخه وي، په کار دي د (راز) او (يار)
وييونو يا په بله وينا د (ن) او (ی) ترمنځ په وينګ تلفظ
کې لارغه او بېلتون او له بله پلوه د (الف) او (ن)
ترمنځ پيوستون راشي، او که ورو ستۍ مانا موخه
وي، نو په کار دي، د (را) او (زيار ه) يا په بله وينا
د (الف) او (ن) ترمنځ لارغه او بېلتون او له بله پلوه
د (ز) او (ی) ترمنځ پيوستون راشي.
په دې ډول نوموړی نيم بيتی يا غونډله دوه ډوله کاريږي.
د لومړی مانا له مخې: کړې که بخشش دوصل راز - ياره!
د دويمې مانا له مخې: کړې که بخشش دوصل را - زياره!
همدارنګه د راديو افغانستان د خبرلوستونو ځايه بېلتون
او پيوستون په دې ورو سته غونډلو کې څومره ماينز بدلون پېښوي:
د جنوبي افريقا صدراعظم ورسټر وويل: د نيپال پاچا ديوانو (؟)

خپل هیواد ته ستون شو. په دې لټګه (جان)، د صدراعظم ټولګه ګرځیدو فورستر او (نن) د (ډیوا) ټولګه ګرځی، نه یو جلا ویی (کمول). لیکن‌بنې د نورو غونډې د همداران دو یمیو ټولګو (فو، آهنګ، لحن، بېلتون او پیوستون.....) سمبولونه بلل کیږي.

## ۲-۷: داینبي او اینبوني سمون:

داینبي او اینبوني ترمنځ همغاغه سمون مطلب دی چې د ګنې، نوی او وګړیې له مخې د کړنډ یا کړي او کړه ترمنځ راځي. د ګنې له پلوه سمون داچې که کړنډ یو ګړی وي، نو کړ ور سره یو ګړی راځي او که کړنډ ډېر ګړی وي یا ډېر ګړی اندول (لکه جنس) وي، کړ ور سره ډېر ګړی راځي.

د نوبې له پلوه داچې که کړنډ ښځینه وي، کړ ور سره ښځینه کاروك کیږي او که کړنډ نرینه وي، کړ ور سره نرینه کاروك کیږي، او د وګړیې له مخې سمون داچې کړ باید له هر یو وګړي (لومړی، دوهم، دریم) سره سم وکاروك شي. نه داسې چې د لومړي وګړي کړ د دوهم وګړي لپاره په کارواچول شي او داسې نور. لکه په ګڼوهنو کې چې ولیدل، د غه دو د (قاعده) بېل وډي (استثنا) لري، لکه په څلوال لپرنډ تېر مهال کې چې کړ د کړنډ نه، بلکې د کمې (مفعول) اړوند (تابع) دی، په بله ژبه د ګنې،

نو ړ ي او وګړي له مخې کې له کړي سره سمون خوري نه له کړنلاره.
همدا راز دغه سمون په اوسمهال کې يوازې دګمي او وګړي له پلو
څه ناڅه ريښتينوالی مومي، مګر د نو ړ ي له پلوه هيڅ نه.
په دې وړ وسته غونډلو کې دا ښيي او ښيي تړنغ سمون له
پلو استثناګانو سره ليدای شو:

## ۳-۷-۱- نالين ندتيرمهال:

۱- زه .... راغلم.
۲- ته .... راغلې.
۳- دی .... راغی.
۳- دا .... راغله.
٤- موږ .... راغلو.
٥- تاسي .... راغلاست.
٦- دوي .... راغلل.
٦- دوي .... راغلې.

## ۳-۷-۲- لين ندتيرمهال (چاروال):

۱- ما .... خټکی وخوړ.
۲- ما .... خټکي وخوړل.

ما . . . . هندوانه وخوره.
ما . . . . هندوانې وخورې.
(۲) تا . . . . ختکې وخوره.
تا . . . . ختکي وخوړل.
تا . . . . هندوانه وخوره.
تا . . . . هندوانې وخورې.
او همداسې د دریم وګړي لپاره.

## ۳-۷-۱۳- لېرنده تېرمهال (بشپړ):

(۱) زه . . . . وخوړل شوم.
(۲) ته . . . . وخوړل شوې.
. . . همداسې تر پایه پورې.

## ۳-۷-۱٤- نالېرنده اوسمهال:

(۱) زه . . . . ځم.
(۲) ته . . . . ځې.
(۳) دی . . . . راځي.
. . . همداسې تر پایه پورې.

## ۲-۷-۵:. لېږندا وسمهال (چاروال) :

(۱) زه .... ږوږدی خوږم.
(۲) ته .... ږوږدی خوږې.
(۳) دی-ها .... ږوږدی خوږي.
.... همدا سې تر پايه.

## ۲-۷-۶:. لېږندا وسمهال (بېچار) :

(۱) زه .... خوږل کېږم.
(۲) ته .... خوږل کېږې.
(۳) دی-دا .... خوږل کېږي.

.... همدا سې تر پايه.

۲-۸-۱: **يادښت**: که په اېښې (مبتداء) کې کړونده (ياکړې په بېچار کې) دوه يا ن يات وي (يوګړې يا ډېرګړې) په اېښونې کې و رسره د ډېرګړو چلند کېږي، لکه:
ځلمی او ژمری ـــ راغلل ـــ ووهل شول.
ځلمی ژمری او پړی ـــ راغلل ـــ ووهل شول.

نولسمه او شلمه پېړۍ ـــ سره د پړتلې وړنه دي.

۳-۸-۲: د نوړنې په برخه کې هم پام په کار دی او هغه دا چې که یو کړ ند، یا په بله وینا، کړې نرینه او یا خو ښځینه او یو نرینه وي، اېښونې ور سره د نرینه د برګړې چلند کوي، لکه:

ځلمی او زرمینه ـــ راغلل ـ یا: نارو غه شول

زرمینه او ځلمی ـــ راغلل ـ یا: نارو غه شول

زرمینه ـ زرینه او نمری ـــ راغلل ـ یا: نارو غه شول

نمری ـ زرمینه او زرینه ـــ راغلل ـ یا: نارو غه شول

۳-۸-۳: مګر که په اېښې کې کړند ونه یا په بله وینا، کړې د برګړې (جمع) وي، د ز یا تر و ګړ دو دوله مخې اېښونې د نوړنې له پلوه په هماغه ورووستي هغه پسې ځي، لکه:

هلکان او نجونې ـــ راغلې ـ یا: ستړې شوې ـ یا: وهل شوې.

نجونې او هلکان ـــ راغلل ـ یا: ستړي شول ـ یا و وهل شوي.

یوه نجلۍ او دوه هلکان ـــ راغلل ـ یا: بریالي شول!

یو هلک او دوې نجونې ـــ راغلې ـ یا بریالۍ شوې.

۳-۸-۴: که وغوا ړو دوه یا زیاتې غونډلې یا په بله وینا غبرګ غونډلې (۳-۱۱-۲) یا ګډې غونډلې (۳-۱۱-۳) په یوه کړ پورې و تړو، نو د نوړنې او ګڼې له پلوه د هماغې غونډلې د اېښې تابع کېږي، چې ور سره ملتیا کوي، لکه:

ځلمی ـ د ولس کلن او زرمینه ـ لس کلنه ده.

ځلمی د ولس کلن دی او زرمینه لس کلنه.
زرمینه لس کلنه ده او ځلمی - د ولس کلن
ځلمی او زمری - د ولس کلن دي او زرمینه - لس کلنه.
ځلمی او زمری - د ولس کلن دي او زرمینه او زرینه لس کلنې..
ځلمی، خوانك او زرینه لس کلن دي - زمری، غمی او
زرمینه اته کلن دي.
ما - خټ او خولی وپېرل.
ما - خولی او خټ وپېرل.
د شعر نړۍ په خیال او د پوهنې بنسټ پر حقایقو ولاړ دی.
خو هاند و هڅه مې وکړه)، په دې لاسوند وایو چې (هاو هڅه
یو پوخ ترنګ (ترکیب) دی او د حنلي بنځینه پایلې په درلودو
سره یو یوازینی بنځینه ویی. نو ځکه دیو ګړي بنځینه ویی چلند
ورسره کوو، که هڅه او هاند وو ایو، نو بیا یې نر ګرځي زرینه
نوم په توګه کاروو:
هڅه او هاند مې وکړل.

## ۳-۹: نوموالـه او کړوالـه غونډلـه

که د یوې غونډلې په ایښودنې کې د آر، یا مرستیال کړ (لکه څوړل، کېدل، شول) پرځای یوازې (دی) او یا د دغه مرستیال کړ نورې بڼې او ډولونه راشي، هغه غونډله (نوموالـه) غونډله بلل کیږي، که نه کړوالـه غونډله، لکه: زرین - روغ دی یا ؤ؛ یا: هلکان - نا روغه دي یا وو؛ زرینه - نا روغه ده یا وه؛ یا: نجونې نا روغې دي یا وې.

## ۳-۱۰: د غونډلې مانیز ډولونه:

غونډلې د کړ د ودله مخې په خبري یا بیاني او ناخبري یا انشائي او التزامي غونډلو ویشل کیږي.

### ۳-۱۰-۱: خبري:

(۱) ببرک .... ولاړ.
(۲) ببرک .... تللی دی.
(۳) ببرک .... تللی و.
(۴) ببرک .... ته.
(۵) ببرک .... ځي.
(۶) ببرک .... به ولاړ شي.
.... او داسې نور:

## ۳-۱۰-۲: ناخبري:

(۱) ببرك .... ولاړ؟ (پوښتني)
(۲) ببرك .... ولاړ! (حیرني)
(۳) ببرك .... به تللی وي! (گوماني)
(۴) (کاشکي) ببرك .... به تللی وای! (ارماني)
(۵) ببرك .... دې تللی وای! (هیلګاري)
(۶) (که) ببرك .... تللی وي! (دارونې)
(۷) ببرکه .... ځه! (امري)
(۸) ببرك .... به ولاړ شي (گماني او هیلګاري)
.... او داسې نور.

## ۳-۱۱: د غونډلې جوړېز د ولونه:

د جوړېز او څومره والي له مخې غونډله یوستوې وي یا غبرګه یا ګډه او یا ګډه لړ.

۳-۱۱-۱: **یوستوې غونډله**: هغه راز غونډله ده چې له دوو غونډلونو (ابینې او اسنوني) څخه جوړه وي لکه:
ځلمی بېوه کوي. یو غښتلی سړی — په ځغاسته راغی.

دکنډ هارانار ..... خوا بنه دي
بوړه ..... نشته
او داسې نور.
یو ستوې غونډ له د نورو د ولو بنسټ بلل کېږي.
۱- آره یو ستوې غونډ له: چې ایښې له یوه (کړ نډ) یا (کړې) او ایښوني له یوه (کړ) او د لېږ نډ په ترڅ کې له یو (کړ) څخه جوړ وي، او د دو دله مخې د دغو درو قالبو ونوتوکو نو (کړ - کړ نډ - کړې) ایښونو له دوو توکو څخه تېرې ونه کړي، لکه:
ن مرله ... محې
ن ټکله ... او به ښې
یوه تحلی ... یو لیکی لولي
یوه سټکي تحلی .... یو ېنډ لیکی لولي
ن ما یو ملګری ... هیڅکله خپل کورنۍ کار نه هېروي.
۲- ارته یو ستوې غونډ له: چې په ایښې یا ایښوني یا دواړو کې د کړ - کړ نډ یا کړې یا درو واړو قالبو ونه له دوو توکو څخه تېرې وکړي او په دې توګه پکې زیات ارتوالی راشي، لکه:
د عراق د عربي جمهوریت رئیس حسن البکر په بله میاشت د افغانستان د جمهوري دولت پایتخت مرکز کابل ته راشي.
یا: د افغانستان د جمهوري دولت یوه کلتوري پله د شوروي اتحاد د پوهنو د اکاډمۍ په بلنه هغه هیواد ته سفر کوي...
او داسې نور.

## ۱-۱۱-۲- غبرګ‌غونډله:

غبرګ غونډله هغه ده چې د یوه اېښې او یوه اېښونې پر ځای دوه دوه اېښې او اېښونې ولري یا په بله وینا که د یوې پوهنې او مطلب د بشپړتیا یا د وړاندې مطلب د څرګندونې لپاره سره دوې غونډلې په کوم اړیکوییکي یا لاره (مکث) غبرګې او ملګرې شي، یوه غبرګه غونډله له منځ ته راوړي. د اړیکوییکو د ډولونو له مخې سره دوه ډول غبرګ غونډلې تر پېژندلو لاندې شو، د غبرګ غونډلې په دواړو بېلابېلو غونډلو کې یوه آره یا خپلواکه او بله څرمه (تړلې) یا بېواکه غونډله له پلا کېږي. آره یا خپلواکه په دې مانا چې آره مطلب او موخه یې څرګندېږي او ځانته په خپلو پښو دریدلای شي. څرمه یا بېواکه په دې مانا چې آره مطلب او موخه یې نه څرګندېږي او ځانته په خپلو پښو دریدلای نشي. په دې توګه په یوه غبرګه غونډله کې بېواکه یا څرمه له خپلواکې یا آرې سره د یوه مطلب په څرګندونه کې مرستیاله او بشپړوونکې اوسي. د اړیکوییکو له مخې د غبرګ غونډلې دوه ډوله په لاندې توګه سنجول کېږي:

۱- ترم غبرګ غونډله:

چې دواړه یې سمتوي غونډلې یې په یو ترمیکي «او» یا لادې سره یو ځای شوي وي، لکه:

نما زوی) او وه کلن (دی) او لور یې شپږ کلنه ده.

یا زمان وي لس کلن دی او ستا لور دولس کلنه ده.

۲- اړوتي غبرګ غونډله:

چې یې یوه (زیاته لومړۍ) پوستې غونډله بیا که او بله زیاتره یې په خپلواکه وي. په دې توګه دلته بیا که غونډله له اړه (شرط) بېل کېږي او خپلواکه اړوتې، لکه:

که ته راشې - زه به درشم.
که ورځ سپینه شي - باران کېږي.
که شمال نه وي ونه نه ښوري.

د «که» په وړاندې د اړوتې غونډلې په سرکې د «نو» اړیکویکې هم راتلای شي، لکه:

که شمال نه وي - نو ونه نه ښوري.

۳- توسني (علتي) غبرګ غونډله:

چې یې دواړه پوستې غونډلې سره په یوه یا غبرګو توسنویکو (ځکه، ځکه چې، چې، داچې، په دې چې، نو ...) غبرګې شوې وي. په دې ډول خپلواکه توسني (معلوله) او بیا که توسن (علت) غونډله لومړۍ شي، لکه:

زه راغلم - ځکه تا بللی وم یا: زه راغلم - په دې چې تا بللی وم.
تا بللی وم - ځکه راغلم یا: ځکه راغلم - په دې چې تا بللی وم.
ځکه راغلم چې تا بللی وم، ځکه راغلم - په دې چې تا بللی وم
داچې تا وبللې وم - نو راغلم یا: څنګه چې تا وبللې وم - نو ځکه راغلم.

## ۴- ځرګندني (بياني) غبرګغونډله؛

چې دوېمه مله غونډله دلومړۍ هغې د زياتي ځرګندتيا لپاره وي او دېوې پوښتنې ځواب وايي. د دغسي ځرګندتيا دځرنګوالي له مخې دالاندې کوچنيو ډولونو د يادولو وړدي.

## ۱- موخنه يا مرامي ځرګندني غبرګغونډله؛

چې په خپلواکه غونډله کې د راغلي مطلب يا پېښې موخه په بله ځرمه غونډله کې ځرګنده شي، لکه:

سنګ ايران ته ولاړ- چې ځانته کار مزدوري پيدا کړي.

زه راغلی يم چې تا ووينم .....

## ۲- مهالي ځرګندتيي غبرګغونډله؛

چې لومړۍ (بېواکه) غونډله د دويمې (خپلواکې) غونډلې د ځرګند کړې چار او پېښې مهال او وخت ټاکي، لکه:

چې ته راغلې- زه به ولاړ شم يا: چې ته راغلې نو زه به ولاړ شم.

کله چې ته راغلې- زه به ولاړ شم يا: کله چې ته راغلې- نو زه به ولاړ شم.

سم چې ما ورته پرلنيست- پرهغې مې سترګې ولګېدې.

زه به هله درشم- چې ته مې وغواړې.

ترڅو ته رانشې- ترهغې زه نه راځم.

يا: زه به هله درشم- کله چې تا وغوښتم.

هومره به دې مړ نکړم- څو دې رنګ د مړي نکړم.

هله به خبر شې- چې تا روجبې له ورشي؛

هله به دې په یاد شي ـ چې دې یو دېوال ته مخ بلته دې شا شي!

۳ـ توتې څرګندېي غبرګغونډله:

چې څرمه غونډله یې د آرې لپاره توت ( څای ) و تاکې، لکه:
چیرې دې سبه ـ هلته دې شپه!
چې نه کار هلته څه کار یا: چې دې نه کار ـ هلته څنګار!
چې له کومې راغلی یې ـ پرهماغه څه!
چیرې چې اوسې ـ په خوې به د هغو سې یا: چیرې چې اوسې ـ په خوې به د هغوی اوسې!
یا د پر دیو ث بو په بې څایه پیښبو، لکه:
د هند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ ( چیرې ) چې د شوروي مشرانو سره خبرې کوي. د لته (چیرې) یو زیاتې توك دی البته له (چې) سره (کوي) نه هلکې (وکړې) راځي.
د (توت) د ښکارېي څرګند تیالپاره له (چې) سره (هلته) هم ملګرې کېدای شي، لکه:
د هند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ چې هلته له شوروي مشرانو سره خبرې کوي.

۴ـ وګمیر څرګندېي غبرګغونډله:

چې په د واړو ملو غونډلو کې راغلی کړنه یا کړه یو (وګړی) وي. لکه: څوك چې خوب کړېږي ـ ترکتمی به زیږوي.

یا د نورو ژبو په پښتو په نامه د ول؛
ځنې هغو خوا روته جنت وګڼو — (څوك) چې له موږه دوه ځيانه پيدا دي.

دلته دا پایله (نتيجه) اخيستلای شو چې (څوك) د (چيرې) (کوم)، (څه)، (کله) او داسې نورو څرګندوني ارپکو يکې غونډې پوانې د هماغې څومه غونډلې په سرکې له (چې) سره راتلای شي — چې تر آره د مخه وي. د غه توپير به د وارو ساريو (مثالو) کې مبنه تر اليدای شو.

## ۵ ـ شيز واله څرګندوني غبرګغونډله؛

چې په دوارو ملوغونډلو کې راغلي کړه ونه یا کړي (تخين) وي لکه؛

څه چې کړې — هغه به ريبې
څه چې وې — هغه به وې

## ۶ ـ کمولي (قيدي) څرګندوني غبرګغونډله؛

چې د دوارو غونډلو اړيکو يکې کړه ولونه وي، لکه:
لرې څه — نږدې راځه، [illegible]

## ۷ ـ پرتلیزه څرګندوني غبرګغونډله؛

چې د دوارو ملوغونډلو اپنې سره د اړيکو يکو په وسيله اتل

پرتله یا همځیر شوی وي لکه:
څنګه دیګ ـ هسې تبېر یا: هسې یې تبېر (کمر پر بنوول شوی)
څنګه غر ـ هسې کربوړی (کمر پر بنبوول شوی)
یو یې ګټي ـ سل یې خوري
سل دې وي مره ـ یو دې مه مره
یا: سل دې وي مره ـ د سلو سر دې مه مره
سل پېګان سوځي ـ د یوې شمې ژړا سره

۸ ـ اړپېچنه (متضاده) څرګندنې غبرګغونډله:
چې دارنې او څرمې څرګندنې یا ابنې سره اړپېچ یا بله والی (تضاد یا تقابل) ولري، لکه:
که څه هم مانې یا ابستلی نه وـ (خو) بیا هم بریالی شوم.
سره له دې چې ناروغ وم ـ پوهنځي ته راغلم.
یا: سره له دې چې ناروغ وم ـ خو بیا هم پوهنځي ته راغلم.
یا د یوې ارتې یوستوې غونډلې په بڼه:
له ناروغۍ سره سره پوهنځي ته راغلم.
له واسه ووځه ـ له نرخه مه ووځه.
که غر لوی دی ـ پر سر یې لار ده.
خپل، خپل دی ـ پردي په ډېر ونارو خپل دي.
دښمن به دې وخندوي ـ دوست به دې وژړوي.

شمه چې سوږ پرې ړنا هم لري (گوره په خداکې ژړا هم لري)

۹- سرغاړي (منصرفه) څرګندني غبرګغونډله:
چې دويمه (څرمه) غونډله يې د لومړۍ د آريې) له څرګند ونيغځه سرونغړوې او نور زيات څه څرګند کړي، لکه:
څلمی ګرم نه دی- بلکې زړې ګرم دی
يا څلمی ګرم نه دی- چې زړې ګرم دی

۱۰- بشپړانده څرګندني غبرګغونډله:
چې دويمه (څرمه) يې د دويمې آريې) د جاج (مفهوم) په بشپړولو يا پراخولو کې مرستياله وسي، لکه:
خوشحال خټک نه يوازې شاعر و- چې تورزن هم و.
يا: بلکې تورزن هم و.
يا: خوشحال خټک يوازې شاعر نه و- چې تورزن هم و.
يا: بلکې تورزن هم و.
يا: خوشحال خټک لوی شاعر و- چې لاتل هم و.
د لته ګورو چې (نه يوازې) د (چې هم) يا (چې لاهم) او يا (بلکې هم) په ملګرتيا د دواړو غونډلو په يکي تينګوي يا په بله وينا (نه يوازې) او (چې هم) يا (نه يوازې) او (چې لاهم) يا (نه يوازې) او (بلکې هم) د دواړو ملوغونډلو ترمنځ د-

بشپړتیا اړیکې څرګندوي. همدومره خبره ده چې که دیوه ټوټې
(بلکه یا بلکې) له کاره وتلې څخه ډډه وشي، نو دیټې (جبران)
لپاره یې په هماغه څرمه غونډله کې دا ښېښي پر آر توک
پانډې یو بل ورته څخ راوړل به کار دي چې له هماغه
خنج سره اهنګ هم پټلین (جوخت) لوړ و لاړ شي.

## ګېډه غونډله: ۳-۱۱-۳:

ګېډه غونډله هغې ته وایي چې په هغه کې تړد و نه زیاتې
غونډلې پر له پسې راغلې وي او څرګند ونې یې سره یوه له بله
کوم دول اړیکې او اړوندې ولري. او دا چې هماغه یوه یوازینی
مطلب د بېلابېلو غونډلو له مخې په بېلابېل دول څرګندیدنه
موندلې وي، نو زیاتره یې یوه غونډله خپلواکه یا آره وي او نورې
تړلې ملې و ... سره پیوسته یا څرمه وي.

په ګرېخه (محاوره وي) پښتو کې ګډې غونډلې زیاتره له دوو څخه ګڼو غونډلو
څخه جوړې وي.. چې په دې دول په دوارو یو ځای شوو څخه ګڼو غونډلو
کې دا آزاد او څرګندو غونډلو شمېر یو پر یو وي، لکه په دې لنډه بولکې:
سبه دی چې سترګې دې ورته دي - که چېرې عقل وای خو لې به دې وه

یار چې د کوټې زه د تیرا یم
خدایه کوټه ودان کړې چې ګوډه تیر له خونه

په لومړي لنډۍ کې لومړۍ برخه (مسره) یوه غبرګه غونډله ده چې آره غونډله یې یکې ده خه او خرمه وړیسې ده. دویمه برخه (مسره) یوه یله غبرګغونډله ده چې خرمه غونډله د آرې غونډلې ترڅنګ راغلې ده. دا چې په لومړۍ مسره کې دویمه (خرمه) غونډله په څرګندنې ویکې (چې) پیل شوې، نو ځکه لومړۍ مسره یوه څرګندې غبرګغونډله بلل کېږي او دا چې په دویمه مسره کې لومړۍ (خرمه) غونډله په اړوییکو (که چېرې) پیل شوې، نو ځکه دویمه مسره یوه اړوتې غبرګغونډله ده. دواړې مسرې (غبرګغونډلې) سره یوځای له توسنې اړییکې چې په لارغه څرګندېږي، یو ګډه غونډله جوړوي. نو له دې یلوه ګورو پا سنۍ لومړۍ لنډۍ یوه توسنې غبرګغونډله ده چې د غبرګو غونډلو شمېر څلورو ته رسیږي او لومړۍ یې (سنه دی) آرغونډله بلل کېږي او که دغه لنډۍ ته د دوو غبرګغونډلو په سترګه وګورو، نو لومړۍ غبرګغونډله (لومړۍ مسره) آره او دویمه غبرګغونډله (دویمه مسره) خرمه ده. د دوېمې غبرګغونډلې بیا دویمه یله غونډله (خو په لاس به دې ومه) آره یا اړوتې او لومړۍ یې (که چېرې غښتې وای) خرمه (آر) بلل کېږي.

او دا هم د لومړۍ لنډۍ (ګډې غونډلې) لېښتیلیک (جدول):

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ... اړینوتی / لې پټه ـ اړینې آره | اړیکوییکی | اړینبی / اړینونی ـ خرمه | لارغه | ... اړینوتی / لې پټه ـ اړینې آره خرمه | اړیکوییکی | اړینبی / اړینونی ـ آره |

لارغه

لومړۍ څرګندې غبرګغونډله — دویمه اړوتې غبرګغونډله

توسنې ګډه غونډله

همدا راز دوېمه لنډه دیوې ګډې غونډلې په توګه چې تر لاندې شو
او څخه داچې داهم یوه توسني ګډه غونډله ده، مګر په همدې وره
توپیر چې دلته توسني غبرګغونډله ترېلي (تړ غبرګغونډلې) د
مخه شوې ده. او بل داچې تړلو ورو ستۍ غونډله یې آره ده او
په دې توګه نوله دوېمه غبرګغونډله (مسره) دلومړۍ غبرګغونډلې
(مسرې) په وړاندې آره بلل کېږي. په دې ګډغونډله (لنډۍ
کې د لومړۍ ملې غونډلې (یارې - دکوټ) اېسنونې د (د) په
غوڅونه چې یوه شعرې اړتیاده، نیمګړې دی. دغه راز دخلورمې
(ارې) اېسنې خپلواکه جې له نلرې او داچې دلومړۍ غبرګغونډلې
دواړې ملې سره په یوې لاربې تړل شوې یا عطف شوې دي،
نو یو تړ غبرګغونډله بلل کېږي.

داهم د دغې دوېمې ګډغونډلې (لنډۍ) لنبلیک؛

اېسنې / اېسنونې (ډکوړ) — خرمه — ارغه — اېسنې / اېسنونې — خرمه — ارغه - اېسنې / اېسنونې — خرمه — امکیوییکی — اېسنونې / بې اېسنې آره

لارغه

لومړیه خرمه تړ عطف غبرګغونډله — دوېمه آره توسني غبرګغونډله

توسني ګډه غونډله

**یادښت:** بیرته توسني ګډه غونډلې سربېره نورې راز راز ګډې غونډلې هم پېدا کېدای شي، د تشبیهي بڼه دښکارندوی په دې ګرېډه کې:

حو بېرو دګلو وږوم دی لو ښلی — ته وا راغله لښتنه کاروانونه

يا د حميد دغه لنډۍ:

سينه مې د يګ ننګي يې غوښې
اوښکې او به دي ببلتون اور پسې کوينه

## ۲-۱۱ک - ګډ لې (مختلطه) غونډله:

ګډلې غونډله هغه ده چې د يوې يوستوې غونډلې په منځ کې يوه يا زياتې خرمه غونډلې ورننوتې وي. دغه راز خرمه غونډله لوته منځپښې (معترضه) غونډلې ويل کيږي.
چې د نسبت يې داچې د اړې غونډلې تر اسنې (مسند اليه) يا د هغه تر کوچنيو برخو و روسته د هماغه اسنې يا برخې په اړيکې (ارتباط) يوه يا زياتې غونډلې په خرمه ډول راشي او بيا د اړې غونډلې پاتې برخه تر هغو پای ته ورسي.
په ګړنخه پښتو کې ګډلې غونډلې ډېرې لږې کارول کيږي او هغه هم په دومره پېچلې بڼه نه. داماناچې نه اړه غونډله يکې دومره اوږده وي، او نه پکې منځپښې تر يوې زياتې وي او هغه هم دومره اوږده نه وي، که نه ژر غبرګو او ګډو غونډلو اړول کيږي. د لته لومړی ګړنخه او بيا له ليکنۍ پښتو څخه د ګډلو غونډلو بېلګې راخلو:

(۱) ن ړچي کوډ ته ځم ـ رخصت اخلم.
(۲) ځلمي ـ چي پر وړ راغلي و ـ ما ونه ليد.
(۳) ما پر و فيسو ر مورګن ستيرني ـ چي د اوړ و ستي ځل کابل ته راغلي ؤ
ـ ونه ليد. يا د غبرګي غونډلي په ډول :
ما د اوړ وستي ځل پر وفيسوړ مورګن ستيرني و نه ليد ـ چي کابل ته راغلي و.
(۴) خوشحال ختټک پښتوا تردې چي يمګوالياري بنديي شي ـ
له اوړ نګ زيب سره په داسي ميړانه ـ چي سارى يې نه دړلود ـ جنګ وکړ.
دا يوه د وه اړخيزه ګډلي غونډله ده. په دې توګه د لومړ ى آري غونډلي (خوشال ختټک له اوړ نګ زيب سره په ميړانه جنګ وکړ) د وه منځپيښي غونډلي راغلي دي، چي لومړ ى يې (په ګوالياري کي بنديي شي) دا ښيي (خوشال ختټک) په ګواليار کي بنديي کيدل څرګندوي او د وهم يې (سارى يې نه درلود) دا ښيوني (جنګ وکړ) يو کړ ول (په ميړانه) څرګندوي او پيا وړ ى کوي. (پښتوا تري ـ چي) او (داسي ـ چي) د ځوړ ولو غونډلو ترمنځ د اړ يکو پيکو د نده پر ځاى کوي، لومړ ى د زماني اړيکي او د وهم بشر نګيز اړيکي.
دلته وينو چي د آري غونډلي اينبي (خوشال ختټک) له خپل اينبوني (جنګ وکړ) يو نا دوده لرېوالى لري، نو په دې لانلې

د ول دغه لریوالی له منځه وړلای شو؛
خوشال خټک - پښتوا تر دې چې په ګوالیار کې بندي شي - له او رنګ زیب سره . په داسې میړانه جنګ وکړ - چې سارې یې نه د رلود.
د ننني کلتوري نړۍ له غوښتنو او اغیزو سره دغه راز غوښتلې په «لیکنو» پښتو کې مخ پر زیاتېدو او پېچلي کېدو دي لکه:
۵- د یونان نومیالی فیلسوف اپلاتون چې په اسلامي نړۍ کې دلوی نامه خاوند شو - د لویدیزې نړۍ لومړی پوهاند دی چې د ژبې د بنسټ او څرنګوالي په باب یې فلسفي څېړنه کړېده - او له دې امله د لویدیزې نړۍ د ژبپوهنې، لاتینستو او د پراګ ښتي ګرامر بر سېر و نو ګڼل کیږي.
۶- د یونان سترې جګې بولې یا حماسې (الیاد او اودیسې) چې سپېځلې ګڼل کېدې، په خوارلسو نومانو کې په داسې پوښټنه او سبک لیکل شوې وې چې کابو نا بومه (نامانوسه) شوې وې.
په پنځمه ګړ لې عونه له کې یوازې (دیونان نومیالی فیلسوف اپلاتون چې په اسلامي نړۍ کې لوی نامه خاوند شو - د لویدیزې نړۍ لومړی پوهاند دی) رښتینې ګډلې عونډ له جوړه کړې ځکه د یوې اړې ترمنځ یوې منځپښې عونډلې ځای نیولی دی، او وړ بېسې نوړې دوې ور سره یو ځای ګنډ نې او نو سنې بېه د نیاتې څرګندونې لپاره ملګرې شوې دي.

## ۳-۱۲: گــرنۍ یا اصطلاحات IDIOMS

په عونډله یو هغه کې مو ترلاسه د وینا بشپړ یووینونه (واحدونه)
یا په بله ژبه عونډلې وځېرلې او په ترڅ کې مو واړه واړه څونډونه
یا لغوېږې گروپونه (فقرې) چې د گروپونو (ایدیمونو) په نامه
بلل کېږي.

### ۳-۱۳: پېژندون (تعریف):

یوه گرنه یو داسې ویېنګړی چې د رازرا نمانالرونکی (دوو
یا ډېرو) ویېو او ویېګوټو څخه رغېدلې وي او په ژبه کې یو
نااړخیز کیډونکی لرغونتوب لري.

یوه گرنه تل په جولېز ډول یو ناشنونی عونډله (مجموع)
گڼل کېږي. په بله وینا یوه گرنه د داسې ویېو عونډله دی
چې په یوه ... له ییز، یا په بله وینا عونډله له پوچیز نحوي)
چا په یال کې ځانته بېلابېله جولېزه خپلواکي سانلای شي

د ساري په ډول د هرات او ښتني سره محاوره ای شي
خو په ګډه چې کومه ټولیزه مانا منځ ته راوړي، نه شنل کېدونکې
مانا بلل کېږي، دغسي يو منځ ته راغلې ګډه. مانا کله داسي
وي چې د هغو توکو (اجزاوو) له بېلابېلو ماناوو سره څه ناڅه
ورته والی او اړیکې لري او د شنلو (تجزیه کېدلو) پر وخت
يې ګډه. مانا کوږیږي له منځه نه ځي. د چلغوزو يو ځړك
هومره يې لا لګېږي، لکه برخه اخيستل، سر پر ځنې کېدل،
مقصد ته رسېدل، ور وسته پاتېدل، خوله پر خوله
کېدل، پر مخ تلل، لاس ته راوړل، يارا وېستل، له منځه وړل
او نور. دغه راز جوړښتونو ته څرګندي (اصطلاحات) هم ويل کېږي.
په دويم ډول کې توکي ګډه مانا داسي رغوي چې د بېلابېلو
توکو ماناوې یې ښکاره نښي کولای او له منځه کيږي ورسره
هر توک خپلې ګوښې آرېي مانا ته ور ګرځي، کټ مټ لکه
د کيمياوي ترکيب توکونه. (د ساري په ډول هايډروجن
او اکسيجن چې يو ځي هم ځانته د خپل ترنګ (اوبه) ښکارندګي
نښي کولای). بېلګې يې، لکه: غوږ ربړل، زړه مړېدل،
زړه خوږېدل، زړه ماتېدل، زړه ښخېدل، سپينې سپوږمېدل
تنبتېدل، پاغوږ ته کېدل، پزې ته رسېدل، سترګې رپېدل،
لاس تر زني لاندې کېناستل، لاس پر سر کېدل، لاس اخيستل
او داسي نور کنايي او مجازي مانا ښندونکي ګړني.

دریم هغه ګړنې دي چې د متلونو او ویلنو (مقولو) په ډول وي
یا په بیله وینا یو راز غوړي او یا وجیزه ډولې او مقوله ډولې وینا وي
او یا متلونه وي، دا مانا چې کومې کیسې ته کوټه نیسي او خپر یو
د ګړهار بصیر کې دي وه مانا شنونکې وني غوړ نده (لغوي ګروپ)
په توګه لکه یوه ګړنه کارول کیږي، کټه مټ د شهرانه ارسال
المثل غوړ نده، لکه: د کبر جام - نسکور دی، پلاني او بیستاني
سره نوک او وریه دي، پلاني او بیستاني د یوې سوړې ماران
دي، یا د یوې باغچې ګلان دي، په یوه ګل نه پسرلی کیږي، دا هم
په انارو، خوند یې باران وریږي دی، د کوهي خته پر کوهي لګي،
وروړي خوړي په کړو حساب ترمنځه، یوه بلا بلې ته وایي چې بو!
بنسبه دي بد بلا دي، خپل عمل د لاړې مل، د حبر لا منله ترموټ چې
پوړي وي، لري څه - نږدې څه، مه کوه پر چا چې وبه شي پر تا!
لاس چې مات شي د غاړې بار شي، یا غاړې ته ور شي،
د چا پر توګا بڼ تبنتیدل (خجالت کیدل)، پر پچه سپړیدل
او کشمیر لیدل، لوړ په لوړه تېر کول، او به له وره تیریدل
او به په ډانګ وهل، چې په ناز لوییږي - په زیار زیږي
لکه په دې کړنه کې:

چې په ناز لوی شي په زیار زیږي
نه په زیار لوی شوم په ناز زیږم

او داسې نور.

له هسې عادي بولنو او متلونو سره د دغو رانګړو نونو پېژندنه
دې چې د لته بولنې او متلونه په جلا او خپلواك ډول د وینا
له بهیره بهر دیوې کړې یا شوې وینا د تېنګار پخلي او جوتیا
لپاره په څرمه او سرباري (اضافي) ډول نه راځي بلکې پخپله د آرجوړښت
یا یوه وینا یېز یووالي (غونډلې) د یو نه جلا کېدونکي توك او
برخې په توګه کار ورکوي. له دې کبله د دا سې تضمین شوي
یا استخدام شوي متل یا بولنې آره بڼه تل خوندي نه پاتېږي.
(لکه به پاسنې شعر کې)، خو په هر ډول دیوې ګړنې غونډې
دوینا یا غونډلې د ننه ځانانا او جولې له مخې یو نه شنل کېدونکې
ویي غونډ او برخه جوړوي، لکه: غرزي. لاس تر زنې
کېنا ست. په دې غونډله کې (لاس تر زنې کېنا ست) ګړنېز
غونډ (کل) دی چې دیوې غونډلې ایښوونې یې جوړه کړې ده.
نور ساري (مثالونه) یې، لکه:
درخو- ګوته پر غاښ ونیوله.
حلمی- او به په ډانګ ببلوي.
حلمی- له زا نو کتوري غواړي.
یا د یو غونډ (ایښې- ایښوونې) یوه برخه جوړوي، لکه:
نور- (او به په ډانګ ببلول) غواړي.
او یا د واړه غونډه یا په بله وینا یو متل ټوله غونډله جوړوي، لکه:
نوك او وریځ- سره نه بېلېږي.

فرانیولوژي نن سبا نوره د ژبپوهنې د څېړنې کومه
څرمه څانګه نه ده بلکې د ژبپوهنې الوا لک په ټیوه مرکزي
څانګه (ساحه) کې ځای نیسي.
د فرازیولوژۍ موضوع هغه ځانګړي
ژبني پېښوونه را اخلي چې موږ یې د فرازیولوګیز
مونو تر نامه لاندې راولو.
دغه ټول پېښوونه د خپل جوړښت له مخې تر ډېره
زیات وییونه را اخلي او په پولې حالتو
کې د وي غوښتنه له پولوڅخه هم تېرې کوي
او ګوانډي شي، غوښتنه له یېزه ځانګړتیا ترلاسه
کړي. په دې توګه موږ په فرازیولوژۍ
کې له ځانګړو ویي غوښتنه ونوا و غوښتنه لو
سره کار لرو.
د دغو پېښوونو ځانګړتیا د دوی په هغه
مانا کې پرته ده چې دوی په کیفي توګه د «ازادو» ویي
غوښتنو (ونه) او انادو غوښتنو له مانا څخه توپیر
لري او خپله څرګندونه په پر له غبتیا او
پاکښینیتیا کې ستر لاسه کوي
(کوینګ + ویرنر ۴ مخ).

د پښتو سيين چار له مخې دوه رازه ګړني سره توپير پيږي (تنوالګرېز)
لکه د بوډۍ ټال (قوس قزح) يا د ګيدړ واده (آفتاب باراننګ)؛
دويمه کړ واله غونډاله، لکه: غونډۍ پول، په ډنډ کې خوله کېدل.
په دې توګه يوه نوې واله ګړنه کېداى شي، د کړنې ملګرتيا کړ واله
شي، لکه لاس ترېنګي کېدل او داسې نور.

## ۲-۱۴: غونډاله پوهېزونې بشننه يا تجزيه:

د دې لپاره چې د غونډاله پوهېزنې يوه نوې (غونډلو او غونډو)
پېژندنې وا او جوليز وجوړښتونو او د ونډو او ځپلمنځي اړيکو
موسنبه ترا ډيرا اچولې وي، د لته غواړو ځينې بېلګې يې ترشنني (تجزيې)
او سپړنې (تشريح) لاندې ونيسو. په دې ترڅ کې به راته دا هم
په سنبه توګه څرګنده شي چې د غه راز شننه له غونډ پوهېزنې او ګړ
پوهېزنې له شننو سره څه توپير لري.

۱- زما ورور له کندهاره کابل ته راغی.

دا غونډله ووېشو چې له (۹) کوچنيو ټوټو جوړه ده: و رور، زما، له
کندهار، څخه، کابل، ته، راغی، څخه جوړه ده او د غونډله پوهې
له پلوه تر دغې زيا ته نه شنل کېږي. که څه هم ځينې ټوټې
لکه (زما) ساده وي نه بېل کېږي او پر دوو ټوټو يا ټوټو
ټوټې کېږي، مګر د غه راز ټوټه کېدنه يا شننه په ګړ پوهې پورې

که نه په عادي او منطقي ډول يې يو لوستونکی په کابل او بيا د (ال
پر خپله راوړي. له دې کبله مونږ يو غونډله پېښو څخه دوه ډوله پېژنو:
يو عادي يا منطقي څخه. لکه پر (کابل) او بل ځانګړی يا فوق العاده څخه چې
ويونکی يې د يوې ځانګړې خوښې، يا فوق العاده موخې له مخې پر يو
بل کوم وييې يا خپله راځي. د ساري په ډول که د ويونکي موخه د
(زما) ارزښت او اوچتوالی وي نو پر (زما) باندې ټينګار کوي.
بيا نو د ويونکي موخه داسې يو هډل کېږي چې د بل چا ورور
يې نه، بلکې خپل يې مطلب دی او که پر (ورور) څخه راوړي، داسې مانا
ترې اخلو چې ويونکی له نورو اړوندو کسانو (خپلوانو يا ملګرو)
څخه خپل ورور جلا کول او نوميول (مشخصول) غواړي او
داسې يې پر نورو باندې ويونکو باندې څخه د ورواخله.
کوم اړيکي چې په دغه غونډله کې د اېښي او اېښوونې ترمنځ ليدل
کېږي، همغې سره د وګړي، نوري او ګڼې له مخې برابرښت
او سمښت دی. په بله وينا (زما ورور) چې يو اېښی دی، د اېښوونې
له اړخه (راغی) سره د يوه، تنيو اړخونو له مخې سمون لري،
داسې نه، لکه د وګړي له پلوه (راغلم يا راغلې) وويل شي، يا
د نوري له پلوه (راغله) او يا د ګڼې له پلوه (راغلل) ناسم وويل
شي او د اځکه چې د تېرمهال ناليږند ګړدکې په دريم وګړي کې
دغه دريواړخيزه سمون دود دی. داچې نن سبا د پرمختللي کالتورې
ژبې په پېښو د نمانځنې له کبله ديوګړي ليدلو د ډېر ګړي کړه او

نوموړي کار ول، لکه زما ته وایې: (تاسې له کندهاره کله راغلاست؟). یو پښتو یېن دود نه بلکې ټولنیز دود بلل کېږي. المانیان دغه راز نمانځنه په یو بل ډول څرګندوي او هغه داچې د مخاطب یو ګړي وګړي لپاره د درېیم ډېر ګړي وګړي ډېر ګړي نوموړی کاروي. ختیځیان زیاتره د درېیم او یو ګړي د نمانځنې له کبله ډېر ګړي کاروي، لکه ستاسې پلار چېرې و لاړل. په کندهاري ګړدود کې د درېیم وګړي د ښځینه یو ګړي تېر مهال نالېږدنده کې ډېر ګړي کارول کېږي: (ورېمه راغلل) چې ټولنیزه یا د رناوینې پېښه ورته ویلای شو بلکې یو سیمه ییزه ګړدودي ځانګړتیا او له ټولنیز (معیاري) پښتو څخه یو سر غړاوی بلل کېږي.

نوموړې ترخیړنې لاندې غونډلې پېښوي (زه له کندهاره، کابل ته راغلم)، کې (زه) د (راغلم) مهال تاړنې په بله وینا یو مهالي کړول دی. (له کندهاره) یو توږنې کړول دی او (کابل ته) یو بل توږنې کړول بلل کېږي، له بله پلوه (زه) یو ساده کړول دی او دا توږ دواړه ترسېتي کړولونه یا په بله ژبه کړولي غونډلې وته. په لومړي کړولي غونډلي (له کندهاره کې (له) سرېل او (څخه) اوسترېل (کندهار) وتوني پېر Ablativer کې اچولی، د همدغه وتونې پېر له کبله (کندهار) پر (کندهاره) اوړېدلی په معیاري پښتو کې په پایله (a) غږ ځېږي.

په دې توګه (کندهار) د سربل او اوسېتربل تر واکمنې لاندې دی او دا توقل کېږي ولې غونډۍ (له کندهار څخه بیا پر کېږ باندې واکمني لري، د ربې واپه کړېلو ته (نن، له کندهار څخه کابل ته) د کړاپ ړونګو دي او په یو محال کې پرېکړ (راغي) واکمنان.

دا او د وړن له پلوه دغونډلې ګرد توکونه پر خپل خپل ځای راغلي دي. یوازې (نن) کولای شي چې (له کندهار څخه) وروسته ځای ونیسي، بې له دې چې پکې پښوبیېنا او ماڼې ونجونه پېښ شي.

۲ - خدایه ته په زړه کې اچوې داسې - چې په ګناه دې مبتلا کړم ته یې وینې (د خوشال خټک د بازنامې د سر بیت). دغه بیت یو ګڼ غونډله ده چې که (خدایه!) جلا بلنې (ندائیه) غونډله و نه ګڼو نو لومړی نیم بیتی یې یوه یوستوې غونډله ده او دوېم نیم بیتی یې دوه یوستوې؛ یا په بله وینا یوه غبرګه غونډله ده، خو د مطلب له مخې. لومړی نیم بیتي غونډله د دوېم نیم بیتي له لومړۍ غونډلې سره یو پېرله څښتی (متمم) یو والی یا غبرګه غونډله جوړوي او دریمه (ته یې وینې) وروستې هسې یوه سرباري غونډلې غونډله له ملګرې شوې او د ځینو د وو غونډلو څرګند ونې یوه بشپړ ونکي او پخو ونکي غونډې یا پخو یې بلل کېږي. دا دی ۸ لومړۍ یوستوې غونډله پنځلو رغنده توکو ویشو:

خدایه - ته - په - زړه - کې - اچوې - داسې

دغه اته توکونه سن دځینو ګرامري اړیکوله مخې دوه روستیو
څلورو غونډو ونو په بڼه ډله ډله کوو؛

خدایه ته ـ په زړه کې ـ اچوې ـ دامینې

لومړی کېنډ غونډه (فاعلي ګروپ) دی، دویم کېمولی، دریم
کې دی او څلورم کېمی غونډه (مفعولي ګروپ). د دغو غونډو ونو
شمېر بیا د وروستو غونډو ونو (اېښې او اېښوونې) ته راټیټوو؛

خدایه ته ــ په زړه کې اچوې دامینې

داوړون له پلوه د اېښوونې کېمی غونډه (دامینې) د شعري
اړتیا له کبله ځیل ځای پرېښی دی، که نه ربښتینی ځای یې
هم د اېښوونې په سر کې له کېږ ول غونډه (په زړه کې) د مخه
او هم ترې وروسته تاکل کېږي. دا غونډه له کله څه هم پوه
خبرې غونډله ده او بکار ووچې اهنګ یې د پړ تېټ پای ته
رسېدلی وای، خو داچې شعري اړتیا او ړون ویجاړ کړی
او کېمی غونډه (دامینې) تر کېږ (اچوې) وروسته
راغلی، نو اهنګ تر څو ړ پدلوړ وسته یو ځل بیا لوړ
شوی پای ته رسي.

پنځ پړ (ته) (اچوې) (دامینې) د واړه ویپو باندې راټولې
مګر وروستی د زیات پیاوړ توب له کبله د غو
نډې یوازې ینې پیاوړی پنځ بلل کېږي.
داګرده غونډله (یامسر) د مانا او موخې له مخې پو ینځي

بشپړ یو والی ،ه بریښي، بلکې «دا» د یوه اړیکویکي په توګه دیوې بلې څرګندنې څرمه غوښتې غوښتنه کوي. له همدې کبله دا ـ له څرګندنې غوښتنه او رښتیا په بل مقابل اړیکوییکي یا څرګندنې ویکي (چې) پیل کیږي. دا ترې غوښتلې د اړیکوییکي «دا» څواب والې چې څه د ول او کومه مینه. په دې توګه د دواړو غوښتلو له ملګرتیا منځ ته راغلې غوښتنې له یوه غیرګڼو نه له یولو او هغه بیا یوه څرګندنې غیرګغوښتنه له.

دا هم دلومړی څرمه غوښتلې شننه:

چې ـ په ـ سنګار ـ دې ـ مبتلا کړم

توله څرمه غوښتنه له شپږ توکه لري. لومړی توک (چې) یو څرګندنې اړیکوییکي دی. دویم (په) یو سربل دی چې بې اړ ستر بله (سره) لوبښه (الی) پاره ترسره کوي او (سنګار) ترخپل واک لاندې راولي او په لوښن پیر (الي حالت) کې یې اچوي. (دی) د دویم یوګړي وګړي (مفرد مخاطب شخص) کمزوری توخړی (دې) او بیا یو کړند چې د ګردې غوښتلې اینبی جوړوی. (مبتلا) له (کړم) سره یو کړوال غوښتنه یا په بله وینا یو ترهښتي کړ رامنځ ته کوي.

د پوړ، تنیو پښو یینو اړیکو له پلوه ګرد توکونه داسې غونډ غوښتنه کوو:

چې ـ په سنګار ـ دې ـ مبتلا کړم.

(بچي) خو لکه چې وویل شول له تیرې غوټې سره د یو غړګندنې
اړیکې چارې په غاړه لري. (په ښکاره) یو توسني غوټه دی چې بله وینا
توسني سره یې (به) د (ښکاره) ځینې نوم ته توسنیز ورکړی او په
دې توګه پرېږي واکمني لري او بیا دا بل غوټه (په ښکاره) په (مبتلا کړم
باندې خپله واکمني چلوي، کټ مټ لکه د یو کړ ول غوندې.
(دې)، د یو ګړي وګړي کمزوري وګړ تو محوري (د مرزو فاطب غمز شمس مشهور)
په بېله د غوټه لې کمند یا په بله ژبه (اینبی) جوړوي.
(مبتلا کړم) یو کړ غوټه یا ترښتي کړېدې چې له (په ښکاره)
سره د غوټه لې اینبوني جوړوي. په ورځ ول ګرده غوټه له
یې د وو بنسټ یې بې خو (اینبې او اینبوني) ویشلی شوې
دې ـــ په ښکاره مبتلا کړم
دا او دوه له مخې کومه ښکنګې تیانلري. اینبی (دې)، لــه
پسنوییز د و د سره سم د اینبوني په منځ کې ورننوتې ځکه د یو
کمزوري تو محوري په دې توګه یې په سر کې اتلل دود نه دې. کـه
اینبوني منځني برخه (په ښکاره) ته د رلو دای، نو هر و مرو بیا
د کړ غوټه په منځ کې ور ننوته (لکه مبتلا دې کړم). او که د دغه
ترښتي کې (مبتلا کړم) پر ځای کوم یو ستوی کړ (لکه وخورم) وای،
نو بیا (دې)، بېخي پای ته راته (لکه وخورم دې). بل ځینې چې په دې
غوټه له کې د یا د ولو دی، هغه د کړي (نه) نه راوړل دي
او پر ځای یې یو ازې په وګړیزې بایلې (م) بس راوړل دي

چې له هغې کښله یې د و د ډېر پښتو پوهان (متصل ضمیر) یا (کمزوري متصل ضمیر) او (فعلي ضمیر) بولي.

د دویمه ډله غونډله (ته مې وینې) د مختلفو غیر ګړغونډلو په شپږ ډولونو کې سیله. برخه نه اخلي او دیوانې یوه تکراري بڼه لري، نو که بیا یې هم مله و بولو. زموږ غیر ګړغونډه له پېژندګلوي غونډلي او هغې چې د غونډلو شمېر یې د روته رسیږي. وروستې آره، د دویمه ډله ګنډنې ډرمه او وروستنی توری (عطف) او بیا آره غونډله بیل کیږي. د غونډلو وروستنی توری آره غونډله لومړی په لاندې د رو توکو نوشتل کیږي:

ته - مې - وینې

(ته) یو کړند او بیا د توکي غونډلي (اینبي) دی. (مې) یو کړی کړ او (وینې) د دویم یو ګړي وګړي یو ستوی او سمهال کړی دی. دا چې کړی (مې) د کړ (وینې) له اړوند وخت کمال کیږي نو د اینبي (ته) په وړاندې په ګډه یو اینبوی جوړ وي، یا په بله ژبه توله غونډله په دوو بنیادي برخو ویشو:

ته — مې وینې

۳- د پښتو د فعلي اصطلاح ګانو واحدونه چې د جوړښت له مخې په هغه د غې متالي کې په صنف بندیو وویشل شي. مهمو او د یادولو وړ نښې یې دا دي (د وسلو دین ډیلکنې څرنګ)

دا غونډله د دوو ملوغونډلو جوړه شوې ګډولي غونډله ده. په دې ډول چې د آرې غونډلي د اینبي او اینبوي ترمنځ یو ځرګندې

څرنګه چې نښلونه اصول شوي دي. څه چې دلته نابرمه (نامانوسه)
او نا دود ده ښکاري، هغه د آریې غونډلې بیا پېښېږي (تکراریږي)
او دا بیا پېښېږي او نا دودې هله راڅرګندېږي ای شي چې نښلېږي
ترې وایستل شي، لکه: "دفعلي اصطلاح ګانو واحد ونه مهمې او
د یادولو وړ نښې یې دادي": سباغلي لودین کولای شول
چې دا لنډوله ګډې لي غونډله داسې وکاږي:
دپښتو دفعلي اصطلاح ګانو ډواحد ونو مهمې او دیا-
دولو وړ نښې چې دجوړښت له مخې به په مقاله کې د ټولبندۍ
(صنف بندي) شي، دادي: خو دا ډول، ده ځکه نه غوښتل چې
معنی څرګندوي څرمې بیاد آریې غونډلې موخن توک یا
مطلوب عنصر (واحد ونو) پورې نه، بلکې په نا غوښتلي توک
(نښې) اړه پیدا کوله. که لنډله ګډې لي غونډله یې په تمیز
ګنونه لي اړ ولی وای، لکه: د پښتو دفعلي اصطلاح ګانو
د واحد ونو مهمې نښې او د یادولو وړ نښې دادي چې د
جوړښت له مخې به په دغه مقاله کې ټولبندي (صنف بندي) شي.
په دې ډول کې بیا هم د معنی ډول کانه کیږي او دار-
غونډله ای اپښودنې (خبر (دادي)) هم بې ځایه ښکارېږي. خو
چې ازبېنه کره سمونه یې داسې کیږي چې د آریې غونډلې د
اپښودنې برخه یې له (نوموالي)، یا په بله وینا له لنډوالي یا
ملکیت څخه ژغورلی وای، لکه په دې ډول: (دپښتو دفعلي

اصطلاح ګانو واحدونه چې د جوړښت له مخې به په دې مقاله
کې ډلبندي (صنف بندي) شي، دا مهمې او د یادولو وړ پوښتنې
لري،) په ټګه پښتو لکه: (د پښتو ګړوالو ګړو توکیو ونونه چې
د جوړښت له مخې به په دغه لیکنه کې ډلبندي شي، دا غوښ
تنې لري:)، په صنف بندیو وویشل شي یوه د خنداوړ
تېروتنه ده (صنف بندي) پخپله د وېشنې مانا لري، وېشنه
بیا څنګه وویشل کېږي!
که څه هم ځینې لیکوال چې په پښتو کې له ګډو لوغونډو لو
سره کوم رټ نابانډي (مخالف) دي. پاسنۍ ګډې لي غونډلې
په دوو، درو بېلابېلو پرله پسې یوستو وغونډلو توکې کړي
خوداګار د ژبې له سیمایي آر (اقتصادي اصل) څخه تېره
دی. په دې مانا چې په هره ژبه کې داهڅه کیږي چې تر وسې
وسې پورې چې په لږو او پرله غبنستو (منسجم) جولیزو توکونو
سره ډېره مانا او جاج (مفهوم) څرګند کړ شي نه دا چې په څپه
ډول په ډېرو ناپرله غبنستو جولیزو توکونو سره لږه مانا او
جاج. توکه یو بشپړ او ناشنونې یووون (واحد) په څو جولیزو
یووتو (لفظي واحدونو) کې څرګند شي له ژبنۍ دوی او سول
څخه سنبکاره سرغړاوی دی.
اوس به راځو خپلې ګډ لي غونډلې ته چې بېلابېل رغنده
توکی نه یې څه راز خپل منځي اړیکي او او ډوون لري.

د آرغونډلي اېښې له پښتو دود سره اوړل شوې. د کمند
(واحد وزنه) اړوند توکونه د مخه او پنځپله کې نه وروسته
راغلي دي. دویم توکلوبیکي (د) کېدای شي چې وسپړي،
ځکه پښتو د ستاینو په توګه هم کارول کېږي. د دې آرغونډلي
په بله برخه (اېښونې) د اوږدوالي له مخې هم کومه نیمګړتیا
نه لري. یوازې د (یې) زیاتوالی یې د کوتنیو نې (انتقاد)
ټکی دی، چې د مخه موږ یې ته وا چوله. د غه توله آرغونډله
د واړه وخوا ووته د څو اړوند وتوکونو په درلود لو سره یوه
ارته. یوستوکې- دا اېښونې د آرتوك په پهول د دې په
لرلو سره یوه نوموالي او په ماڼیز پهول یوه خبرې غونډله
بللای شو. دا بله منځپښې څرمه غونډله داوږدوالي له پلوه
سمه ده، خو توپیر په غونډله (په دې مقالې کې) (د مخه او مقاله)
هسې بې ځایه په اوښتې بڼه کښل شوې دي، ځکه په (لیکنې
معیار یې) پښتو کې د ویونکو د پرسنت په لاسوند (په کې)
د خپل اړوند ځینو توکو د پایلې وغږونو د ودنه دی، لکه (په
اسره کې)، (په کوټه کې)، لکه د حمید مومند په دې شعر کې:

(خط پر مخ د صنم لیکي، که سپوږمۍ شوه په هاله کې
دا یې غابنې په خوله کې زیب کا، که ژاله شوه په لاله کې).

# ۳-۱۵: کړاوونه

۱- غونډل پوهه څه ته وايي او له څه نه جوړېږي؟

۲- دغونډلي پېژندون دتعريف، څرګند کړئ!

۳- يوه غونډله په کومو دوو سترو برخو وېشل کېږي؟

۴- دغونډلي ډېر بنسټيز توکي کوم دي؟

۵- نيګړې غونډله څه ته وايي؟

۶- غونډ څه ته وايي؟

۷- دغونډلې رغنده توکونه (متشکله اجزا) کوم دي؟

۸- دپښتو غونډلې اوډون څه ډول دی؟

۹- دګرامري چارو ماهرانو له مخې دغونډلې ډولونه وښياست!

۱۰- غونډله دجوړښت له مخې په څو ډوله ده؟

۱۱- يوشتوې غونډله په څو ډوله ده، بېلګې يې وښياست!

۱۲- يوه ارته يوستوې غونډله په انځورليک کې وښياست!

لږ تر لږه دجوړښت له مخې دهرې لنډۍ غونډله بېل ډول راوپېژنئ:

۱۳- که په ميوند کې شهيد نه شوې ... ګرانه لاليه بې ننګۍ ته دې ساتينه

۱۴- په لوړ ټوپک وېشتلی راشې ... دبې ننګۍ آواز دې مه راځه ميينه

۱۵ - اشنا مې سر پر وطن کښېښود | په تار د زلفو به کفن ورته ګنډمه
۱۶ - مخ دې څراغ خوله دې غنچه ده | در ته حیران یم چې پتنګ که بورا شمه
۱۷ - ولې به زه ور پسې نه مرم | چې مور ته شا کړې ما ته شنه له خندا شینه
۱۸ - تورې کوه برې به سوې مې | که برې نه دې ځوانان تل به پر وطن مرینه
۱۹ - آخر به وران شي پېښور ه | د ننګرهار پښتنې ښېرا درته کوینه
۲۰ - له خماره سترګو دې جار شم | چې په ژړا شي مرغلرې لتو یوینه

په دې لنډیو کې آرې (خپلوا کي) او خرمه (بېوا کي) غونډلي سره لو پېیر کړئ!

۲۱ - که زه خبر وای چې بېلتون دی | ما به مې یار تر اس نیولی ګرځونه
۲۲ - که راته نه ګورې، در ته ګورم | که راته نه ګورې پروا دې نه لرمه
۲۳ - بېلتون په تنګه کوڅه راغی | ما ویل شلاګوی، ده ویل کوږ دې ورانومه
۲۴ - ما ته وعده د خولګۍ راکړه | څه له دلتوره پر سر لاړ وي دربه شمه
۲۵ - مینه یم، منکره نه یم | که شینکی خال مې د څمرو په څو کو ځینه
۲۶ - له لرې مرم، له نژدې سوزم | زه لیونۍ طاقت د دواړو نه لرمه
۲۷ - د خوشالۍ یاران مې ډېر دي | چې ښا دې لاړه، ملګو لو پورته کړل لاسونه
۲۸ - یارې خو تا کړه، ما خو نکړه | چې تومت راغی، اوس پر ما کړې منتونه
۲۹ - سپوږمۍ پر ما دې څه احسان دی | زما اشنا د ډیوا له سیورې ته ځینه
۳۰ - سپوږمۍ سر وهه را خېژه | زما اشنا د لتورو شپو غزل کوینه

دا وروسته شعرونه لس او دوه سره په نثر ولیکئ:

۳۱ - د مسلمانانو زړګی لزاړچې اخلي | څه شول په دې چې کلیسا ته درومي
۳۲ - څه مې اد زیار خود ابو ال ګواب! چې له ما درومي وا به چا ته درومي؟

۳۳- د سپېڅلو ګروهو ګېچه بې له پاکو ګناهو　　او د هېلو پیمانه مې نهیلو ښو لوښتنه !

۲۴- برزو ندې ښېبو که دزیار په رښتیا خپل اغزي　　پر هر زړه تي نارام ژوندي پې له شعروونه ولېکښته

۳۵- که سستي شوي زیاره مېنې کې دیار　　دیا د ځلې به دې جوړ شي لا ایرو !!

۳۶- ګمرنه څه ته وایي او په دري او لاتیني کې یې څه بولي؟

۳۷- ګمرنې د مانا او رغاونې له مخې څو ډوله دي ؟

۳۸- د ګراهري چار له مخې د ګمرنې ډولونه وښیاست !

۳۹- (لرسره تېربېدل) د پورته ډولونو له مخې څه راز ګمرنه ده ؟

۴۰- یو کنایي او مجازي مانا لرونکې وېی او ګمرنه سره څه توپیر لري ؟

# نوې تومونې

| | |
|---|---|
| اټکل | گومان، حدس، تخمین |
| اټکل شمېر | تخمیني یا غیر معین عدد |
| اخځ | مأخذ |
| اخځلیک | د مأخذونو فهرست |
| آر | اصل، اصیل، اصلي، پرنسیپ |
| آرپېر | اصلي حالت |
| آر ته یوستوی غونډله | منکشفه ساده جمله |
| آرشمېر | اصلي عدد |
| آرغونډله یا آره غونډله | اصلي جمله |
| آرماني | تمنایي |
| آره | اصل، منشأ، نسب |
| آره یوستوی غونډله | اصلي ساده جمله |
| آړ | شرط، مانع |

| | |
|---|---|
| اړوتی | شرطي، مشروط |
| اړوند | تابع، متعلق، مربوط |
| اړوندي | تابعیت، تعلق، ارتباط، مربوطیت |
| اړیکپیز | ارتباطي حالت |
| اړیکنوموړی | ارتباطي ضمیر |
| اړین | ضروري، حتمي |
| انځور لیک | ګراف، دیاګرام |
| اړیکوییکی | ارتباطي کلمه (حرف ربط) |
| اند | فکر، مفکوره |
| ـپوهه | ایدیولوژي |
| ـدود | طرز فکر |
| انګازه | انعکاس، عکس العمل |
| انګېنوم | صوتي نوم، نام آوا |
| انګېنومېز | نام آوایي |
| اواز | فونیم، واج یا واژ |
| اوازپوهه | فونیمکس، فونیمشناسي، واجشناسي |
| اوډل | ترتیبول، تنظیمول |
| اوډون | ترتیب، تنظیم |
| اورېز | سمعي، سماعي، شنوایي |
| اوړون | ګردان، تصریف |

| | |
|---|---|
| اوړونی | گرداتی، تصریفي |
| اوړېدونی | گردانید ونکی، متصرفه |
| ژبه | متصرفه ژبه |
| -ګړ | گردانید ونکی مورفیم |
| اړستربل | پسینه، پوستپوزیشن |
| اوسترمهال | استقبال، مستقبل |
| اوښتون | تغییر، تحول، انقلاب |
| اوښتی پېر | مغیّره حالت |
| اېښوونی | مسند، خبر، گزاره |
| اېښی | مسندالیه، مبتدا، نهاد |
| بشپړ | مطلق، مکمل |
| -کړ | مطلق فعل |
| تېرمهال | مطلقه ماضي |
| اوسمهال | مطلق حال |
| اوسترمهال | مطلق استقبال |
| بشپړاند | بشپړوونکی |
| -کړ | سوپلاتیف یا ناقص فعل |
| توك یا ټوټك | بشپړوونکی عنصر یا جز |
| بیا پېښې | تکرار |
| بېچار | بیکار، بې فعالیته، مجهول فعل |

| | |
|---|---|
| -کړ | مجهول فعل |
| -کړنوم | مفعولي صفت |
| بېدوده | بې قاعده |
| بېدودي | بې قاعده ګي |
| بېلتون | فصل |
| بېلنبت | اشتقاق |
| بېلنبتي | اشتقاقي ، مشتق |
| بېواک | کانسونېنټ ، صامت |
| پایښود | ضمیمه ، تعلیق ، اپنډکس |
| پایلنیوي | نتیجه ګیري ، استنتاج |
| پایله | (فعلي) خاتمه ، نتیجه |
| پایلیزه | (د کتاب) خاتمه |
| پرتله | مقایسه ، مناسبه ، نسبت |
| پرتلیز | مقایسوي ، نسبي |
| پړنوم | ذات اسم |
| پړني | بدني ، جسمي ، ذاتي |
| پړی | بدن ، جسم ، ذات ، وجود |
| پښویپوهانه | ګرامرپوهانه |
| پښویه | ګرامر ، دستور ، صرف ونحو |
| پښویېز | ګرامري |

| | |
|---|---|
| پلوي | طرفدار، سمتی، توجیهي |
| نوموړی | ضمیر |
| پور غږن | واج قرضي |
| پورویی | مستعار لغت، واژهٔ قرضي |
| پوړ شمیر | رتبي یا وصفي عدد |
| پوښتنغونډله | استفهامی جمله |
| پوښتننښه | د سوالیې علامه |
| پوښتنلیك | پرسشنامه |
| پوښتنوګړی | استفهامي ضمیر |
| پوښتني | استفهامي |
| پیر | مرحله، دور، دوره، حالت |
| پیژند (ون) | ارتیکل، حرف تعریف |
| -پاینه | استعلامیه ورقه |
| پیوستون | وصل |
| تاړی | وند، افکس |
| ترغبرګغونډله | عطفیه مضاعفه جمله |
| تړوییکی | حرف عطف، د عطف توری |
| تواني | امکاني؛ اقتداري |
| -بکړ | -فعل |
| توری | حرف، ګرافیم |

| | |
|---|---|
| ټوسن | سبب، علت |
| -پېر | الی حالت |
| -غونډله یا ټوسني غونډله | علتیه جمله |
| -وییکی | دعلت توری |
| ټوسني | الی علتی، علتیه، معلول |
| ټوك یا ټوکی | عنصر، ماده |
| ټول | مال، ملکیت |
| -نوم | مضاف |
| -نومځری | ملکي یا اضافي ضمیر |
| ټون | ځای، ظرفیت |
| -پېر | ظرفي حالت، لوکاتیف |
| ټونی | ظرفي، مکاني |
| -کږول | مکانی قید |
| تېرمهال | ماضي، تېره زمانه |
| -کړ | ماضي فعل |
| ټوټك | جزء، جلد، جزوه |
| ټوټکر | پېرا گراف |
| ټولنوم | عام اسم |
| ټولی | کتیگوری |
| ټولیز یا ټولتیال | کلی، عمومی، عامه، مجموعی، جمعي |

| | |
|---|---|
| جاج | مفهوم |
| جوت | معلوم، ثابت، مشخص |
| جوله | بنه، شکل، لفظ |
| جولیز | شکلی، ظاهری، لفظی |
| چار | عمل، عملیه، فعالیت، فنکشن |
| ـ وال | فعال ـ معلوم |
| ـ ـ کې | معلوم فعل |
| ـ ـ ـ نوم | فاعلی صفت |
| ـ انګ | عکس العمل، بازتاب |
| ځانګړتیا یا ځانګړنه | خصوصیت، خاصه |
| ځانګړنوموړی | شخصي ضمیر |
| ځانګړی نوم | خاص اسم، عَلم |
| څپه | هیجا، سیلاب |
| څپیز | هیجایي، سیلابي |
| څرګندني | تشریحی، توضیحي |
| ـ غونډله | بیاني یا توضیحي غونډله |
| څرګندوییکی | بیانیه ادات |
| څرمه | فرعی، ضمني، الحاقي |
| ـ غونډله | فرعي جمله |
| څرګوالی | کیفیت |

| | |
|---|---|
| څرنګیز | کیفي |
| څومره والی | کمیت |
| څومره ییز | کمی ، کمیتي |
| څیز نوم | اسم ، سوبستانتیف |
| څیزنومیز | اسمي |
| څیز وال | غیرشخصي |
| خبر | خبر،مسند ، گزاره |
| خبري | خبری،بیانی، بیانیه |
| ـ غونډله | خبري جمله ، بیانیه جمله |
| ـ کړ | خبري یابیانیه کړ |
| خپلواک (غبن) | واول |
| خپلواکه غونډله | مستقله یا اصلي جمله |
| خج | فشار |
| خجن | فشارلرونکی |
| دود | قاعده ، رواج ،مروج |
| دودیز | باقاعده ، عنعني متداول |
| دوک | قانون |
| دبرګړی | جمع |
| روږدی، | معتاد |
| روږدتیا | اعتیاد |

| | |
|---|---|
| روږدي | اعتیادی |
| روږدي | عادي |
| ـ کړ | اعتیادی فعل |
| روستاړی | پسوند، لاحقه، سوفکس |
| زوړنج | ډینامیک جج |
| ژبپوهاند | زبانشناس |
| ژبپوهنه | زبانشناسی |
| ژبپوهنیز | لنگویستیکي |
| ژبنی | لساني |
| ستاینوم | صفت |
| سربل | پیشینه، پریپوزیشن |
| سرغړاندي | مستنکف، سرکش، متمرد، باغي |
| ـ غونډله | مستنکفه جمله |
| سول | عقل، منطق |
| سولیز | معقول، منطقي |
| شمېرتړنگ | عدد دی ترکیب |
| شمېرنوم | عدد (اسم) |
| شننه | تجزیه، تحلیل، تفسیر |
| ښځینه | مونث |
| غاړه | لحن، ترنم |

| | |
|---|---|
| غبرګغږ | دیفتونګ |
| غبرګغونډله یا غبرګه غونډله | مضاعفه جمله |
| غبرګون | انعکاس، جواب |
| - کړ | انعکاسي فعل |
| - نومځری | انعکاسي ضمیر |
| غږ ( ږغ ) | فون ، صدا ، سونډ |
| - پوهه (هنه) | فونولوژي |
| - پوهیز | فونولوژیکي |
| غوښتني | دعائیه ، مطلوب |
| - کړ | دعائیه فعل |
| غونډ | ګروپ، فقره |
| غونډله | جمله |
| - پوهه | نحو ، سینتکس |
| - ییز | جملوي |
| - پوهیز | نحوي |
| غونډ نوم | اسم جمع |
| کړ | فعل |
| - اوښتون | د فعل ګردان |
| - تړ | دفعل رابط |
| - توک | فعلي عنصر |

- غونډه
- محال
- نوی
- نوم
کړ ند
- پیر
کړوال
- غونډه
کړ واله غونډله
- ګړنه
- ول
- ولی
کړ ولیه
کړ ولي غونډ
کړی
- غونډه
- پیر
ګړ غونډله یا ګړه غونډله
ګډلي غونډله
ګړ

فعلي گروپ
فعلي زمانه
فعلي جنس
فعلي يا مشتق نوم
فاعل
فاعلي حالت، نومينا تيف
فعلي
فعلي گروپ
فعلي جمله
فعلي اصطلاح
قيد
قيدى
فعلي ريښه
قيدي گروپ
مفعول
مفعولي گروپ
مفعولي حالت
مركبه جمله
مختلطه جمله
مورفيم - واج

| | |
|---|---|
| - پوهه (هنه) | واج شناسي، مورفولوژي، صرف |
| - پوهين | مورفولوژيک، صرفي |
| ګړدود | لهجه، ګويش |
| - پوهه | لهجه شناسي |
| ګړنپوهه | اصطلاح شناسي، فرازيولوژي |
| ګړنه (څرګندنه) | اصطلاح، محاوره، ايديم، فراز |
| ګړنی | اصطلاحي، محاوروي، شفاهي |
| ګڼه | عدد، إفراد وجمع |
| ګوماني | شکي، احتمالي |
| لالرنغوتنومځوری | لالري اشارتي ضمير |
| لترمهال | بعيده ماضي |
| لرستاينوم | دمسند صفت، د پريديکات صفت |
| لرکړی | بالواسطه مفعول، داتيف |
| - پېر | د بالواسطه مفعول حالت، داتيف |
| لرنغوتنومځوری | لري اشاري ضمير |
| لنبتيليک | جدول |
| لنډ تېرمهال | قريبه ماضي |
| لنډ ستاينوم | دمسند اليه صفت، نژدې صفت |
| لنډکړی | بې واسطه مفعول |
| - پېر | دبې واسطه مفعول حالت، اکوزاتيف |

| | |
|---|---|
| لوستلیکی | کتاب قرائت، درسي کتاب، تکسبوک |
| لوښن یالوښین | الي، انسترو منتال |
| - پېر | الي حالت، انسترو مینتاتیف |
| لوښی | ظرف، اله، سامان |
| لېږند فعل | متعدي فعل، ترانزیتیف فعل |
| - چارګړ | کوزاتیف فعل، مصدر رضاعي |
| لیکلړ | لست، مینیو |
| لیکښنبه | د تنقیط علامه، پنکچویشن |
| لیکنی | تحریري |
| لیکی | کتاب |
| - پلوړ | کتابفروشی |
| - پلورې | کتابفروش |
| مانا | معنی، معنا |
| - پوهه | علم معاني، سیمانتیک |
| - توک | معنوي توک |
| - نوم | اسم معنی |
| - ونج | معنوي تغیر |
| مختاړی | پیشوند، سابقه، پریفکس |
| مختړ | فعلي سابقه، پریویرب |
| مرستیالګړ | معاون فعل |

| | |
|---|---|
| مله غونډله | ملګري يا فرعي جمله |
| منځپېښې غونډله | معترضه جمله |
| منځتاړی | میانوند، انفکس |
| منځوال کړ | انعکاسي فعل |
| موخه | هدف، مقصد، مطلب، مطلوب |
| موخن | مطلوب |
| نابشپړ کړ | غیر مطلق فعل، استمراري فعل |
| ناپای | ناتمام، مصدر، اینفینیتیف |
| ناشنونی | لایتجزاء، غیر قابل تجزیه |
| نالېږند کړ | لازمي فعل، اینترانزیتیف فعل |
| ناوړېدونی | غیر متصرفه، نه ګردانیدونکی، نه اوړېدونکی |
| نرينه | مذکر |
| نغوته | اشاره |
| نغوتنوځری | اشاري ضمير |
| نوچار | ابتکار، اینیسیاتیف |
| نوبن نوم | اسم جنس |
| نوبنی | جنس |
| نوم | اسم |
| - اوړون | د اسم ګردان |
| - اوښتون | د اسم تغییر |

| | |
|---|---|
| وم پېر | اسمي حالت |
| و ځړی | ضمیر (ځړی، نماینده) |
| م نوړی | اسم جنس |
| نوموال یا نومیز | اسمي |
| عونډ | اسمي گروپ، مسند الیه |
| نوموال عونډله | اسمي جمله |
| گړنه | اسمي اصطلاح |
| وملیك | فهرست اسمأ یا اعلام، اینډیکس |
| نوموپوهه | ترمینولوژي |
| نومونه | نامکن اریې، اصطلاح (علمي، تخنیکي)-ترم |
| و میرل | تشخیصول |
| نومیز یا نوموال | اسمي |
| نیموالك (غبن) | نیم واول، شبه واول |
| نیولیك | فهرست، مندرجات |
| و تو نپېر | د مفعول منه یا منشأیي حالت، ابلاتیف |
| ور تلو نپېر | د مفعول له حالت |
| ور منډون | امر، حکم، قضاوت |
| ور منډي | امري، قضاوتي |
| و گړپوهنه | انتولوژي، انترو پولوژي، بشر شناسي |
| و گړی | شخص، صیغه |

| | |
|---|---|
| ولی | ریشه، جذر، روټ |
| ونج | مبدل، عوض، بدلون، معاوضه |
| ونجول | بدلول، تبدیلول، عوضول، معاوضه کول |
| ونجون | بدلون، معاوضه |
| ونجېدل | بدلېدل، عوضېدل |
| ووړ شمېر یا مات شمېر | کسري عدد |
| وېش شمېر | انقسامي عدد |
| وېی | لغت، کلمه، واژه |
| ـ اوډون | ترتیب کلمات |
| ـ پانګه | لغوي ذخیره، ویکابولري |
| ـ پور | قرض واژه یي |
| ـ پوهه | لغت شناسي، واژه شناسي |
| ـ رغاونه | لغوي ساختمان، واژه سازي |
| وییز | لغوي، کلموي |
| ـ نج | لغوي فشار |
| ویکنومځری | اداتي ضمیر |
| وییکی | ادات، حرف، پارتیکل |
| همېشنی یا همېشه یي | استمراري، دایمي |
| هېبنی | حیران، متحیّر، متعجب |
| هېبنتیا | حیراني، تحیّر، تعجب |

| | |
|---|---|
| هېښنده | محیّر، تعجب آور |
| هېښنی | تعجبي |
| یوستوی | ساده، بسیط |
| — غونډله | بسیطه یا ساده جمله |
| — ویی | بسیطه کلمه |
| یوگړی | مفرد |
| یوون | واحد، یونټ |



کښناند: سید محی الدین
۱۱-۱۲-۱۳۶۱

# اخځلیک


۱ـ الهام محمد رحیم: روش جدید در تحقیق دستور زبان دری ـ پوهنځی ژبان و ادبیات، ۱۳۴۹.

ـ د پښتو گرامر طرح و نرمه ـ د کابل پوهنتون د کتابتون د افغانستان پوهنې ځانگه.

۲:ـ پالوال، عبدالرزاق: پښتو نوي مصدر ـ ادب پوهنځی، ۱۳۵۰، کابل.

۳:ـ پنزل، هربرت: د پښتو گرامر، محمد رحیم الهام ژباړه، ادب پوهنځی، ۱۳۴۰.

۴:ـ ترکی، حبیب الله: نوی ژبپوهنه او ژبنې مسایل ـ پښتو ټولنه، ۱۳۴۴.

۵:ـ خانلري، پرویز: ساختمان جمله ـ بخشی از جلد دوم تاریخ زبان فارسی، بنیاد فرهنگ ایران، تهران ۱۳۴۹.

۶:ـ رښتین، صدیق الله: پښتو گرامر، پښتو ټولنه ۱۳۲۷.

ـ د پښتو مصدر روښو لار ښود، پښتو ټولنه ۱۳۴۴.

۷:ـ زیار، مجاور احمد: د ژبپوهنې بنسټونه د ادب پوهنځی، ۱۳۵۳.

ـ ویې پوهنه، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، ۱۳۶۰.

۸:ـ لودین، دولت محمد: د کلام د اجزاوو جوړښت، ژبې، ۴۳ گڼه ۱۳۵۱ کابل.

۹ـ د پښتو ژبې د فعلي اصطلاحگانو واحدونه او د هغوی د قاموسي تشریحاتو ځینې پوښتنې (ژباړه) ـ کابل مجله، ۸ گڼه، ۱۳۵۱ کابل.

9. F. De Saussure:
Grundfragen der Allgemeinen Sprachwissenschaft Übersetzer: H. Lommel. 2. Auflage, Berlin 1967.
10. G. Helbig & J. Buscha:
Deutsche Grammatik-Leipzig 1975.
11. R. König & U. werner: Zum Gebrauch der phraseolgismen. Humboldt Universität Berlin 1979.
12. H. Krahe:
Indogermanische Sprachwisissenschaft II Form Lehre, Hamburg Göschen Band 60—Berlin 1963.
13. A. Martinet:
Grundlage der Allgemeinen Sprachwissenschaft. Kohlhammer Verlag 1967.
14. J. C. Mayer—Ing:
Untersuchungen von Satzbau des Paschto. Hamburg 1966.
15. J. M. Pence:
A Tagmemic Grammar of Pashto clause structure. Univ. Microfilms Michigan 1967.
16. H. Penzl:
A Grammar of Pashto—Washington 1955.
17. D. Shafeev:
A Short Grammatical Outline of Pashto Mouton & Co. 1964.
18. H. Tegey:
The Grammar of Clitics Int. Center for Pashto Studies, Kabul.
19. U. Ulrich:
Wörterbuch Linguistische Grundbegriffe. Verlag Ferdinand Hirt 1972.
20. G. Wahrig: Das Grosse Deutsche Wörterbuch. C. Bertelsmann Verlag Gutersloh 1966.

